د روژا احسن بو بکرم — هر چه روا روژ دماد بارن

هر چه د روژا مرنی نزدیک — روژ باید هیچ پس روانین

هر چه مرنهی د روژ بزد — بمانند هیچ د خار روی ژیت

چه بعینی کن بینی مشغت تک — او خویا هستم پباوین

لو د بهتندی جز ادی — کس لو ژ جزا غواری تیمو بیش

چه ژ روژ بی ره و اکویی — لتشن ورماندکا بحزوین

ما چه پپنتو دی بیان کری — وامی پا چه کتاب بشی کن بلی دین

هر چه ژ روژ منکر دسی — هیچ تر و امیتی ب دوندین

هر چه ظاهر و ژ پردایک — هیچ د باطن هم پر د بابی لین

مسکین و بلیدین — داسن کیدی بخو دین

ژ کرامات بیان بکم — چه مسلمانان نی ژ دکرین

چه ژ کوستی بی ببتین — بلد و اسب کرامی ششین

غلوم و دالمیان علی ژ کوتدی — چه ژ روا ژ کرامات بابین

نه بره و نه زه همن چید تو انگروویه　　تو ناشتی و چغندر بدوور کوین

نه عقیلی و جار نایه زیمن و مطلبدی　　نه دورکی و هنوه پروانوین

کپ دالحمان بیج کسکوه و ریاپفیر　　تروهیچ شیح بو تنگر ما نسمی یا کاوروت

کیی بلار یا زیمن تو ری پیا دنه ورک　　بیرون کیسند دوری پیال ازاو ای کروت

مکر وه دری چه لیوه شهر　　دبل شهروت نیکوت تسوتیریت

بیرون که بهیچ شهر والقرابات　　خوش فقیر بسیر درماندویت

هرچه زکوت نیابی عاشق دیرییا　　کس وه رمال پا زی تقلیدیت

هرچه بیکر شی اکر زکات ملم　　هیچ تروبخش کرنده کاوریت

سر په بیو بکر انو دو واجب　　چه دوان دکم زیمن و بر ده دیا چرسیت

نه پاسی او رنه بدلوی زیمن و پار　　نه هیچ بروجه پیال ازاو کرویت

نه هیچ دبارجه پیاز رکاوه وی　　نه هیچ بروجه دامنیان نزیک ویت

سر به او دی ورلیش پا نیم غنم وی　　یا بیاد و فغان ورک ویت

او دوی وی عسرق لیتر ایده یی　　سر په دنبور و خانه ویا بیت

هر چه لیدلي کتابونه ستي وړ یدي    هغه د څلورو په باب دین

دابراهیم مقام پایه پوري شي    چه دایم امان په لیکي بسي وین

هر چه لیدلي کتابونه ستي بدړ یدي    خپل حجتي یې او عیسی د څخه ځي کوین

بې کتابه په ښیلي یا د کعبي زیارنګ    بې کوره جرګو بی ملحه شمراوین

لکه فرسي د و یل    هر چه بې منکر لحج شین

د اسلام بنید بنیاد د او یې    مسلمانان ددګره د بازرو ګوریت

چه د اسلام بنید بنیاد زدګ    دا ان دل مسلمانان ګنین

د مسلمانان ګرې یا پو یی    چه دا بنید بنیاد و یاد ریت

ترو چه رواودي نهم د کانډي    او نهم زنګ چه رواوندین

هر چه زدګ بنید بنیاد    ترو منو پدنه د کتاب ونې د کوین

د خدایي کتابونه ویر دي    د څلور کتابو نومون څرګند دین

توریت پلوز د عبرانی    د موسی په ثبت خدای رسیداوین

انجیل په لرز د سریاني    د عیسی ورته خدای انجیلوین

زه نور رب نور د نوریا یې | و دا و دوست خدای استویا نو وین

فرقان په پوز عربي | و محمد و ت خدای نه ول کړوین

صلوات رحمت په دوی بی | زیات به خدای و پلیوین

چه یمون د کتاب بوزدک | ترو د خلو به پیغمبری زدکوین

محمد د عبد الله و | عبد الله د عبد المطلب وین

عبد المطلب د هاشم و | او هاشم د عبد المناف وین

هر چه خلو به پیغمبری زدک | ترو خلو مقام او کلیمه د زدوین

هر چه خلو مقام او کلیمه زد | د فقر لقمی په آرام دین

شریعت طریقت حقیقت دی بی | خلورم د معرفت کین

دا شریعت کلیمه دا دی بی | دا سر دی سیاپ پیښن

لا اله الا الله | محمد رسول الله حج وین

د طریقت کلیمه دا د | سالکان دي نغوډین

لا اله الا الله عظمت | محمد رسول الله خلیفه و وائین

د حقیقت کلمه دا ده — صادقان دې یقین

لا اله الا الله بېد قدرته — محمد رسول الله برسالته وایي یقین

د معرفت کلمه دا ده — عارفان د باور کړین

لا اله الا الله حقاً حقاً — محمد رسول الله صدقاً صدقاً وایي یقین

بغیر نامه ښنیدین کیلي — وا یې سر بیدي نغوزدین

چې خبر وي لاته مقام — هم عملي په کړوین

په نفاق مشایخانو دي ویلي — روا دي تخ توبه د ورکوین

اول مقام دی د تائبان — تائبان د ګناه جاوزین

هر چه ګناه بخبار وزي — په دنیا تبا بیان نشین

چې تایب شي ګناه — تا بیان په لاده مر وین

دووم مقام دید عابدان — عابدان په اخلاص بندګي کړین

هر چه په اخلاص بندګي وینک — دان دل عابدان کنین

عبادت په اخلاص کان — عابدان په لادرش سروین

# بسم الله الرحمن الرحيم

| | |
|---|---|
| سیا ر و ښا ن و یلی د ینه | د اسړی د ې یې نغو ړ ینه |
| زه به گفتا ردفا یدې (۱) ووایم | که یې ځو ک په زړه فهم لر ینه |
| ظا هر عمر دی ځو ر و ځې | دی مې په ځرگند له تاسې ځینه |
| مر گ ربښتیا در نزدې کیږي | بیشکک ظا هر عمر کمیږ ینه |
| د سړ یو کړی بـو یـه | چه مرگ ډیر ډیر یا دو یـنه |
| په یو ه کال مړی مره وي | په بل کال ځینې وی ځینې نه وینه |
| د خدای امتاځی (۲) مې یو مرگ دی | با و ر کانښې نا گا ها به د رشینه |
| مړی دې و خپل چا روته نظر که | چې مشغو ل له کومې چارې د ینه |
| په هرچار کې چې (۳) مړی موسی | مر گ به د هغو چار و گوا هی لینه |
| د دین چار په اخلاص کانښی | بې اخلاصه به نور چار نه قبلیږ ینه |
| د یو ه گنا ه به بل وانه خلی | له هر چاسره به خپله کرده وینه |

په هرخوی کښی چې ځو ک ومري (۲مخ) حیات (۴) به یې خویونه یادوینه

---

۱ - «فا دې» لیکل شوی. ۲ - «استا وځی» لیکل شوی.

۳ -(چې) له بل چاله خوا لیکل شوی ښکاری . «۴»(حیات = ژوندی ).

ددین ددنیاچارې دی څرګندې    تا سې سې(۱) پسو زده کړې دینه

پو ښتنه به په ر ښتیا وي    که په ایات، په حدیث سوبا ورشینه

له سرګه پس چې څنې سوال که    په حیات هغه ځواب دې حاصلو ینه

د سړ یو کړی بـو یـه    چې د د ین علم ز د ه کوینه

د علم طلب فر ض دی    پیشکک په ا و ر ته په سیړو نه

چـې د عـلـم طلب نـه کـه    هغه له فر ضو منکر د ینه

چې منکر د ینه له فر ضو    پوښتنه کانښی چې له کوسه قامه دینه

ز ه خر ګند و یلی نـه شم    سا په اشارت ویـلی د ینه

هـر چـې عـا قـلا ن دي    په اشارت به پو هیږ ینه

ز ه به رسا له په پښتو و کښم    که عنا یت دسولی و ینه

هر چې عـلا قـلا ن دي    عنایت دې لهښه خدایه وغواړینه

یکښې به امر نهې سا ز کړم    چې سړي(یې) دنزمو(۲) په دودلولینه

چې وهیر وي د هغو به یاد شی (۳سخ) او دهغو به زده شی چې (یې)زده کوینه

اول د خد ای ثنا به وا یم    چـې د یـر ثنا پـه د ه ښا یینه

هرڅوک محتاځ (۳) د(ده) دی    دی محتاځی(۴) د هیچانه لر ینه

ا و وصفته د خد ا ی د ادی    چې یو بیت (۵) یاد شوی دینه

دی حیا ت دي نه په روح    چې به هیڅکله نه مر ینه

مخلو قا ن په د ه حیا ت دی    باور کانښی آخر خو به ومر ینه

---

۱ - «تاسسې» هم لوستل کیږي، خو دلوسړی سخ ددریمې او اومی کرښې په شان (سې) زیات دی. اودلته دچارو دزده کړی په باب خبره ده، نه د «سمې»

۲ - نظمو. ۳ - محتاج. ۴ - محتا جی.

۵ - د ۲۲ سخ په اسم بیت کې د (یوبیت) په ځای په (یوه بیت )لیکل شوي.

دی بې ژبې گویا دی    هم له هره لوزه (۱) اگاه دی هر څو دینه

سړی په ده گویا دی    هم له هره لوزه (۲) اگاه نه دینه

عالم دانا دی له هر څیزه    هم ده وا په مخلوقان پوه کړي دینه

سړي په مخلوقان کښې داناتر دي    او له واړه دانا یې اگاه نه دینه

دی قادر هسې توانا دی    چې هر څه دی کړی شینه

زاړه مخلوقان چار په ده که    هره چار مخلوقان کړی نه شینه

او بې غوږ و هر څه اوري    هم په وا ږه وازدي پو هیږ ینه

سړي په ده شنوادي (۴ مخ) هم په هرا وازنه پو هیږ ینه

خدای بې سترگو هر څه وینې    او هم په نظر کښې هر څه وینه

مخلوقان په ده بینا دی    او نه یې په نظر کښې هر څه دینه

هره چاره د مخلوق په رضا نه شی    واړې چارې د خالق په رضا شینه

چې یې رضا وه هغه یې و کړه    او هرچې (یې) رضا وی هغه به شینه

له سور له پلار له ورور مستغنی دی    هم دی زوی لونه نه لرینه

څو لا مخلوقان یې کړي نه وو    دی له هر اصل اگاه و هر څو دینه

چې مخلوقان (یې) پیدا کړه    د غه پس یې څرگند کړه چې نومینه

مخلوقان یې رنگا رنگ کړه    سړی (یې) له هرچا بهه کړی دینه

نور مخلوقان یې د سړی د پاره وو کړه    سړی (یې) د خپل شناخت د پاره کړي دینه

دی بې همتا یک تنها دي    شریك یې نه څوك نه دی نه به یې وینه

قوي غالب پر خپله چار دی    د خدای چارې په خدای هسانې (۳) دینه

مخلوقان بې لوری نه دی    د ده هستی هیڅ لوری نه لرینه

دی په مثل پاك دریاب دی «۵ مخ» له ده سره هر څه یگا نه دینه

خدای له هر څیزه په علم په هستې دی    هسې لکه اوبه له ماهی و ینه

---

۱، ۲، لفظ. ۳ -(آسانی).

ساهې چې په‌اوبو کښې گرزي ‏ ‏ ‏ ‏ سخ يې تل و او بو و ته او سينه

هسې چه سړې جا روزي ‏ ‏ ‏ ‏ سخ لې وښه خداي وته کېږينه«۱»

خداى حضور باد شاه دى ‏ ‏ ‏ ‏ دپادشاه په حضور گناه ترونه‌ښا يينه

د حق په ويره کښې دي اوسې ‏ ‏ ‏ ‏ دله ويرې ې هيڅوك نه وځينه

شقي سعيد،سعيد شقي که ‏ ‏ ‏ ‏ رانده خوانده که‌خوانده رانده کوينه

ذليل عزيز،عزيز ذليل که ‏ ‏ ‏ ‏ فقير باد شاه باد شاه فقير وينه

هغه په خوارو کښې لاخوار دى ‏ ‏ ‏ ‏ چې له‌موندلى نعمت ناامید شينه

بهنه کبر شيطانې دى ‏ ‏ ‏ ‏ له دغه کبره دې‌هريو هتيات‌اوسينه

دى بـا د شاه غنى دى ‏ ‏ ‏ ‏ چې دا هسې چارې په ده شينه

سړى ځينى چاربې کالى کړى‌نه‌شي ‏ ‏ ‏ ‏ ده واړه مخلوقان‌بې کالى کړى‌دينه

او سړى کله چار که ‏ ‏ ‏ ‏ کله لـه چـا رې ودرينه

خداى دا يم چار که (٦ سخ) چې هيڅکله له چا رنه درينه

د خداى‌چارده تمامه‌بې‌نقصانه ‏ ‏ ‏ ‏ په نقصان دمخلوقانوچارى‌دينه

خداى هسې قادر دى ‏ ‏ ‏ ‏ چې‌په اتکل‌يې واړه‌چارى کړې دينه

د خالق چارې دى گرانې ‏ ‏ ‏ ‏ مخلوقان به‌يې هيڅوك کړاى‌نه شينه

که د ريا بو نه شينه تورى ‏ ‏ ‏ ‏ او ونې بو تې قلمو نه شينه

سړى پيرى فرښتې کاتبان شي ‏ ‏ ‏ ‏ ترو د خداى صفت به واړه کښېنينه

واړه صفت به‌يې و کښاى‌نه‌شي ‏ ‏ ‏ ‏ که‌تورى په کښېل وچ‌شي‌قلمونه‌بې‌مات‌شينه

د خداى ثنا ده ډيره ‏ ‏ ‏ ‏ سا په خپل اتکل و يلى دينه

د خداى رحمت په هغو کسانو ‏ ‏ ‏ ‏ چې ډيره ثنا د خداى وايينه

لکه يې حق دى دستا ينې ‏ ‏ ‏ ‏ ځان به دې‌په خپله وستا يينه

۱-(کښېږينه) ليکل شوى دى . ۲-،( احتياط دى . ).

دوهم د محمد صفت به وایم　　دا سړی دي يې نغوړینه

دی خاتم د انبیا وو　　هم له مخلوقانو بهه وهرڅود ینه

احمد، محمود محمد یې نوم دی　　داعی، هادی، سراج د رسول صفتونه دینه

رسول ویل زه یم د خدای له نوره (۷مخ) دا مومنان زما له نوره دینه

په نبه صفت رسول موصوف دی　　د ده صفت په ده باندي ښایینه

نور څوك به بې خه ثنا که　　د ده ثنا به خدای ویلی دینه

ثنا چې خدای ویلی پر نبی ده　　سړی دې مطلق ر ښتیا گڼینه

تماسی وا روی ء عالمه !　　چې خدای ومحمد و یلی دینه

د آسمانو نه زمکې وا ړه　　ما ستاله ابروی کړی دینه

راحت ښا دی به د هغو وی　　چې په دین د محمد به ثا بت شینه

چې کلمه د نبی وا یی　　او خوی د مومنا نو و نیسینه

شفاعت به یې ر و زی شی　　که چار د نبی په نغوته کړینه

دریم صفت به وایم دلسو یارانو　　چې دوی هم په بهتری یادشوی دینه

هغه عشره، مبشره وو　　چې نومونه دلس واړو څرگند دینه

ابا بکر، عمر دد ه خسر ا ن وو　　عثمان، علی، په زومان یادشوی دینه

سعد سعید، طلحه، زبیر　　ابو عبیده، عبدالرحمان دشپږونو مونه دینه

څلور یاریې خلیفه و و (۸مخ) د څلو رواړو خو بو نه څرگند دینه

ابابکر د قافه به و په صدق　　عمر خطاب دې په عدل بهه گڼنیه

عثمان د عذان حلیم هم شرمناك و　　علی دا بې طا لب دی پهلوان ستار گڼینه

تر و خوی ښه کانیء عالمه　　هرڅوك به ترخپل خوی پورې یادشینه

ا و ل علم د توحید د ی　　مسلمانان دي ز د ه کوینه

ورسی پوښتنه به له توحیدوی　　بل ځواب یې کړی شینه

چې له توحیده اگاه نه وی　　ځواب د توحید کړی نه شینه

په عرصات به و شـر میږي　　باور کانیء اول چې دي پوښتینه

عاقلان کسان هغه دی هرچې ددین علم زیا توینه
رسول ویل هغه زیان کاردی چې دوه روځې سما وسینه(۱)
مقصود دی هغه سوی چې په اخلاص عمل په علم کړینه

* * *

## مسکین ویلی دینه
## دا سړی دې یې نغوړینه

دتوحید علم به دربیان کړم چې سړی یې زده کوینه
چې له توحیده یې پوښتینه (۹ سخ) بل ځواب یې کړای شینه
توحید مقام دی دیګا نګی چې شپږ منزل اسه دیسنه
نوسو نونه به یې وایم که د چا په رضا وېسنه
شریعت،طریقت، حقیقت دی معرفت،قربت، وصلت دې ګڼینه
په هرمنزل کښې امردی هم نهی بنده به خدای له واړه وپوښتینه
منزلونه د توحید اوامر نهې واړه بیشک دسړی په زړه کښې دینه
هرڅوك دی وخپل زړه وته نظر که خپل زړه ته پکښې سیر شه وګورینه (۲)
که دامنزلونه اومقام یې وی مونډلی اوعمل به یې هم په کړی وینه
تر و دې هسی امید کاندی چې ځواب به دښه خدای وکړی شینه
سړی دې امر نهی زده که چې د خدای ځواب وکړی شینه
چې دخدای ځواب ونه که په دیوان به دښه خدای و شرمیږینه
دی به د یرپښیمان حیران شی په هغه پښیمانی به سود دده نه وینه
دعاقلانوکړای بویه چې په حیات د توحید علم حاصلوینه
نورعلم عبادات خیرات حسنات واړه (۱۰ سخ) دتوحید دشناخت دپاره کړی دینه
توحید دی درې جنسه (۳) که د چا په باور شینه

---

۱- مطلب یې پوره څرګند نه دی.

۲- شه نه لوستل کیږی .(خپل زړه ته که پیر . . .) هم لوستل کیدای شی.

۳- هرځای (ځنس) په (جنس) لیکل شوی دی.

توحیدد عام د خاص دی    د ریم دي د خاص الخاص گڼینه
توحید د عام د غه دی    چې وایي خدای یو دی یقین یې وینه
توحید د خاص د غه دی    چې له یکانګی اګاه وینه
توحیدد خاص الخاص دغه دی    چې یکانه له حقه شینه
د عاسو کړای بویه    چې توحید د خاصو زده کوینه
د خاصو کړی بویه    چې توحید دخاص الخاصو زده کوینه
چې توحید دخاص الخاص حاصل که    ترو دې چارد مؤحدانو په دود کړینه
د بشر خوي دې ترو پر یږدی    خدایي خوی دې و نیسینه
خدایي خوی دروح راحت دی    مؤحدان دروح راحت دي زیاتوینه
هرچې علم د توحید زده که    خواب د توحید په اسان شینه
تل به یګانه وینه له خدایه (۱ (سخ))    راحت د یکانګی ورسره وینه
راحتو نه رنګا رنګ دی    بهتر د یکانګی دي ګڼینه
توحید یکانګی د خدای ده    هرڅوك دې په یوه خدای ایمان ورینه

* * *

## مسکین ویلی دینه (۱)

دایمان بیان به وکړم    چې سړی یې زده کوینه
چې له ایمانه یې پوښتینه    بل ځواب یې کړای شینه
دایمان فرایض واجبات شرایط دی    احکام، ارکان، نور، ظلمات هم پکښې د ینه
هرچې خپل ایمان اوس مستقیم که    دا یمان زده کړه دې وا ړه زده کوینه
دایمان وروړاله فرضو پخوا فرض دي    او سیا نه فرض دي پاکي ګڼینه
له فرضه پس فرض دا دی    چې سجده دزړه په حضور وینه
نکاح یې روانه دی په کتاب کښې دی کښلي
چې احکام ارکان دایمان یې نه زده وینه

---

۲ - (همسا ن) لیکل شوی دی. ۳- دو یمه مصرع یې نه ده ایکل شوې.

دوه وکنـو نـــه د ایـمـا ن دی ‏ دژبې اقراردزړه‌صدق دې هسې گڼینه

چـې خـد ا ی بې شکه یـو دی ‏ د ده شریک دې هیڅو کې نه گڼینه

یو ایما ن مجمل بـل مفـصل دی (۲ ، سخ) د واړه په کتا ب کښې بـیا ن د ینه

ایمان مجمل چې دخدای ونومونو صفتونو ایمان وری

ا و چې د د وا ړ و حکم قبلو ینه

چې ا یما ن مجمل یـې زد ه که ‏ تروایمان مفصل دې زده کوینه

او وه صــفته د ا یـــما ن دی ‏ سړی دې اووه واړه زد ه کو ینه

وړمی ایما ن دې و خد ای وری ‏ دایما ن وروړه اول په ده بنا یینه

چـې ایمان وښــه خـد ای وری ‏ هغه دې چاردښه خدا ی په امر کړینه

هرچې چاردښه خدای په امرنه که ‏ دا یما ن دعو ی بې دروغې دینه

دووم چې ایمان وری وفر ښتگا نو ‏ ښتې په عبادت مشغو لې د ینه

هر چې ا یما ن و فر ښتو و ر ی ‏ هغه د فرښتو خوی دې ونیسینه

دخدای بندگی دې په پا کی که ‏ چې ایمان یې په ملکوت کې ثا بت شینه

دریم چې ایمان و کتا ب و ری ‏ ترودې عمل که چې ا مر وینه

چې په کتاب عـمل ونـه کـه ‏ باور کانړې ومنز ل به نه رسینه

څلورم چې ایمان وری وپیغمبرا نو ‏ ترو د ې خوی د ا نبیا وو نیسینه

چې دانبیا واله خوی مخالف دی (۳ ، سخ) په د ین د ا نبیا ثا بت نه د ینه

پنځم دې وری دور وستی ر و ځې ‏ په وروستی روځ به هریوجزا موسینه

منا فقا ن یا به کا فر ا ن شی ‏ چې و ر و ستی ر وځ به نه منینه

شپږ م نیـکی بـــد ی وا ړ ه ‏ بـا و ر کانې له یوه خدا یه گڼینه

نیـکی بـدی کړی خدای دی ‏ په نیکی خدای راضی په بدی نا راضه وینه

او و م دې همې یقین کـه ‏ چه له مرگه پس به ژ و ند ې شینه

چې له مرگـــه پخـوا ومـری ‏ بیشکه تل حیـات به بیا مو مینه

چې ا یما ن یې ثــا بت نه وی ‏ خپل ایمان دې په حیات ثا بتو ینه

چې خپل ایمان اوس ثابت نه که | هغه کسان زیانکاران دینه
پاکه کلیمه دایمان سپر دی | او د ایمان تن دې نمونځ گڼینه
د قرآن لوستن یې زړه برکه دوير ذکر | د ایمان تنگي پليتي چارې دینه(١)
نور یې رښتيا دروغ یې تارکې ده | اوحکم يې چې له ويرې په امید کښې اوسینه
اغوستن یې پاکيزه گی بر هیزگاری ده | او شرم دې ښايست د ایمان گڼینه
میوه یې علم ساعزه یې اخلاص دی (۱۳ مخ) زیور یې ښه خوی او خوا نه دې دینه
صبر شکر د ایمان نقطه دی | ترود ایمان دبقا شرطونه دې زده کوینه
په دری توکه ایمان باقي وی | یو دایمان په سونده چې خوبش اوسینه
دووم چې ورکیږی ترواند وه که | دریم چه دایمان له ورکونی هتیات(٢)اوسینه
لویی نیز (٣) د ایمان دی | سړی دې خپل ایمان نه زیا نوینه
څلور فرضه د ایمان دی | څلور رواره د اله گو ښسی بیانوینه
ایمان له فرضو یوزده کړه د خدای دی | دووم چې ایمان و خدای ورینه
او دریم چې ایمان ژغوری | څلورم چې سرتیرله ایمانه گورووینه(٤)
او د ایمان شرطونه دا دی | چې و خدای وته په غیب ایمان ورینه
اووم زده کړه چې علم غیب واړه د خدای دی | دریم چې بهښت دوزخ نالیدلی وښینه
څلورم چې حلال په حلال شمیری | پنځم چې حرام په حرام گڼینه
شپږم چې په ویره په امید ښه خدای اوسی | اووم چې په خفی ذکر دایم خدای یادوینه
اول واجبات: ایمان یوله عالمانو(٥)صحبت دی | دووم چې له فاسقانو لری شینه
دریم چې وتیری او بهور ته | څلورم چې رنځور و پوښتینه

---

١ ـ ښه نه لوستل کیږی ٢ـ احتیاط.

٣ـ (لوی نیزه. . .، لویې نیرد . . .) هم لوستل کیږی.

٤ـ ښه نه لوستل کیږی. ٥ ـ علمان لیکل شوی دی

پنځم په فقیرانو شفقت دی (۵ سخ) او شپږم چې سړی پر یو ینځینه
اووم چې سر ورسره پخلا که اتم چې بهلاری اغزی کاڼی لری کوینه
نهم چې پلیتی د لار که پټه لسم دې مرحمت پر یتیم کړینه
یو لسم د عالمانو(۱)زیارت دی دولسم چې اهل، عیال وته ایمان وروښیینه
ایمان دی پنځه جنسه (۲) مسلمانان دې پنځه واړه زده کوینه
«۱»ایمان معصوم دانبیا ی «۲»مقبول د مومنانو دې گڼینه
«۳» ایمان موقوف د منافقانو «۴»او متبوع د هغو دی چې هلك وینه
«۵» ایمان مردود د کافرانو مومنان دې پنځه واړه یاد اربینه
رسول د ینه ویدی چې ایمان په زړه په خوله په چار رښتینی شینه
چې دا ایمان پیژندوی نه وی - تش نوم به د ایمان ورځخه وینه
ایمان په کافرانو فرض پر مومنانو سنت دی اوچار دایمان په هرچا فرض دینه
چې پیژندوی شی له ایمانه تر و دا یمان عمل دې زده کوینه

***

## مسکین ویلی دینه

## دا سړی دې یې زغورینه

| | |
|---|---|
| دایمان عمل به در بیان کړم (۱۶ سخ) | چې سړی دې زده کوینه |
| چه دا یمان له عمله یې پوښتینه | بل ځواب دې کړ ای شینه |
| دایمان عمل پنځه بنیاده داسلام دي | چې په اورته په سیره فرض شوي دینه |
| زیری کلیمه د شهادت دی | چې تقلید صحی(۳)وایې مسلمان شینه |
| هغه په کلیمه مسلمان نه شی | چې په تقلید فاسدیې ووا یینه |
| تقلید صحی (۲) د غه دی | چې له دې مسئلې(۴) دې اگاه وینه |

۱-«علمانو» لیکل شوی دی ۲-(خمسه)لیکل شوی دی
۳- صحیح (۴-»مسلمانی» هم لوستل کیږی.

چې کلیمه په اخلاص وایي مسلمان شي — هر چې نه وایي لا کافر دینه

او تقلید فاسد د غه دی — چې یې هسې زده کړی په رسم ووایه

کلیمه رښتیا پاکه وینا ده — کلیمه گوی دې رښتیا پاکه وینا وایینه

له دروغ بیهوده فحشي که دې حذر که — په حیات دې خپل گفتار ثابتوینه

هر چه خپل گفتار ثابت که — هغه به د کلیمې اجر سو مینه

دی به اهل شریعت شي — هم د ژبې تشبیه به یې حاصل شینه

په حیات به ثابت اوسي — په ثابتې کښې به دی بیشک وسرینه

په قرآن کښې دینه کښلې (۱۷ مخ) ان الله لا یضیع اجر المحسنین

هغه کسان لا کافران دی — چې د ا کلیمه ونه وایینه

په دنیا به له ایمانه بې ایمان ځي — په قیامت به له شفاعت بې نصیب وینه

چې کلیمه په اخلاص نه وایي — هغه لا په خرگند نفاق کښې دینه

د منافقانو نښان د غه دی — چې دروغ ناروا (۱) بې فهمه وایینه

چې دروغ بیهوده فحش شرک، بې فهم وایي — رسول په رد مردود یاد کړي دینه

په قرآن کښې دینه کښلې — منافقان کافران به خدای په جهنم کښې وسیځینه

دا یې هم زده کړای بویه — چې به کلیمه له روحه که له تنه سره وینه

کلیمه شهادت به وی له روحه — او کلیمه طیبه به له تنه سره وینه

لا اله الا الله به وی له روحه — محمد رسول الله به له تنه سره وینه

لا اله به وی له تنه — الا الله به له روحه سره وینه

دووم عمل د ایمان نمونځ دی — چې د زړه په حضور یې وگذارینه

رښتینی نمونځ له خدایه راز دی — نمازگذار دې د خدای په راز کښې خوښ اوسینه

چې نمونځ په حضوری که اندوه یې نشته — (۱۸ مخ) د زړه د روح راحت به بیا موینه

د زړه حضوری، له خدایه راز به د هغه وی — چې خدای یې په زړه پیژندلی وینه

چې زړه یې په نمانځه کې حضور نه وی — هغه نمونځ دې ناروا گڼینه

---

۱ -(نارو) لیکل شوی.

## ښه نبي ويلي دينه
## دا امتي دې يې نغوړينه

خدای لعنت په هغو کړي — هر چې بې حضوره لمونځ گذارينه

د منافقانو يو نښان دغه دی — چې لمونځ په سستی په ريا بی گذارينه

زيات به غافل وينه له خدايه — په ژبه به يې لږ په رسم يادوينه

د مسلمانانو کړي بويه — چې خوی د منافقانو ترکوينه

منافقان به اميد که چې د اطاعت دی — په قيامت به يې له گناهه بيا موسينه

کافر به شي هغه ژوی — هر چې بې منکر له لمانځه شينه

د لمونځ کړونې کړای بويه — چې لمونځ يې هسې گذاری چې روا وينه

نادرې مسئلې به د لې و کښېم — چې لولی هله لمونځ له صحی (۱) لمونځه شينه

په حقايق کښې دينه کښلي — چې پنځه امامه پنځه کعبې دې زده کوينه

دامام د کعبې نښانې وايه (۱۹ سخ) د سړی په تن کښې دينه

دا نښانه په ځان کښې وينې — هغه کسان چې لمونځ گذارينه

اول امام تن دووم يې زړه دی — د ريم روح څلورم دې فهم گڼينه

پنځم امام دی عقل — دا سړی دې يې پېژنينه

اوله کعبه محراب دی — د و وهم د ابراهيم کعبه گڼينه

د ريم بيت المعمور دی — څلورم دې کرسي گڼينه

پنځمه کعبه عرش دی — که د چا په باور شينه

که څوک پوښتنه کاندی — چې ځايونه يې کوم دينه

وايي ځای د تن محراب دی — او د روح دې کعبه گڼينه

د عقل ځای بيت المعمور دی — او د فهم ځای کرسی گڼينه

د زړه ځای مطاق عرش دی — ترو په خپل ځان کښې دې هر يو امام لرينه

---

۱ ـ صحيح . ورته مخکي «کا» زيات دی .

هرچي له کعبوله اسامه اګاه نه وي    يوتش رسم عادت دي يي ګڼينه

***

## امام اعظم ويلي دينه
## دخداى رحمت دي پرده وينه

چي څلور مسئلې نه زده فتوه ده دعالمانو (۱) ( . ۲مخ ) چه نمونځ دي دوړاندي نه ګذارينه

که وايي ته امام زما يي، ستا امام کوم دى    وايه زما امام قرآن دى که دي باورشينه

ما ا قتدأ په تا پسي د ه کړي    تا په چا پسي ده کړي که دي پوښتينه

و ا يي ما په محمد پسي ده کړى    چي سيد(ي) (۲) سر سلانو دي کړينه

ز ما نمو نځ په تا روا د ى    ستا په چا روا دى که دى پوښتينه

وايه زما نمونځ دخداى په علم    په شريعت د مصطفى روا دى که يي پښتينه

زمانمونځ کړي که خپل کړي    وايه نمونځ خپل کړم اماستي ستاسي چي وشينه

په تاسي مي قرأت او سجده سهوده اخيستي    کـه ستـا سـي بـاو ر شينه

هـر چي ا ما مت که    اول دا مسئلې دي زده کو ينه

هر چي يي زد ه کړى ا ما م شى    دعا لمان (۳) په فتوه به سلا مت شينه

ا صلو نه د د ين ا ته دى    او ل تو حيد، دووم دي عد ل ګڼينه

دريم امامت څلورم يي نبوت دى    پنځم ا مر شپږ م د ي نهي ګڼينه

اوم يي تبراء ا تم يي تولى ده    دا اته اصله د دين دي يادلرينه

اووه ا صله د ا سلام دى    ( ۱ ۲ مخ ) اول يي سر سايه دووم دي قرباني ګڼينه (۴)

د ريم يي و تر نمو نځ د ى    څلور م طوا ف د عمري ګڼينه

پنځم چي عو ر ته دميره حرمت که    شپږ م چه زهمن دمور وپلار خادم شينه

---

۱-(علمان) ليکل شوى دى. ۲- بايد(سيدى) وى (ي) ور کړه شوه.

۳ - (علما ن) ليکل شوى دى ۴ - ( قر با ن ) ليکل شوي د ى .

او وم ذو الارحام دی(۱) چه په قربت، شفقت ویل پوښتینه
حکمونه د شریعت اته دی اول فرض دووم واجب ګڼینه
دریم سنت څلورم یې مستحب دي پنځم حلال شپږم دي حرام ګڼینه
اووم مباح اتم مکروه دی سړی دې اته واړه یاد لرینه
پنځه جنسه(۲)نمونځ په اورتو ناروادی پنځه واړه دې اورته نه ګذارینه
امامت، جماعت دجنازې ددووعیدو پنځم دجمعې نمونځ دې یاد لرینه
شپږ بنیاده د نمانځه دی چه عقل، بلوغ او علم دینه
اسلام، پاکی شپږم یې نیت دی نماز ګذار دې دا شپږ واړه زده کوینه
دا فرض دی دوه جنس(۳) یو عین بل دی کفایت نومینه
(د)اسلام پنځه بنیاده فرض عین دی نمونځ دجنازې ځواب دنژی دسلام(۴) کفایت دینه
فرض عین چې په ځان که کړو نی خلاص شی(۲۲مخ)
کفایت که یو یو که ګرد نود نورو ساقط شینه

***

## شپه نبي ویلي دینه
## بنده به له توحیده پس له نمانځه پوښتینه

د اسري دی باور کاندی خدای به له څلور پاکی ادسی پوښتینه
له استنجا، له اودسه، له غسله، له تیممه اوله اسره، نهی چې پکښې دینه
چه داڅلور ځوابه ورکه دغه پس یې له نمانځه هسې پوښتینه
چه فرض، واجب و سنت، مستحب مفسدات او مکروهات یې تا پسوزده کړي دینه
هر چې اګاه وی ځواب ورکه
چې اګاه نه وی هغه به یې ځواب کړی نه شینه
د مسلمانانو کړی بویه چې سل دیرش مسئلې دې زده کوینه
سل دیرش مسئلې دا دی که څوک یې پتینه

---

۱ - «دوم الارحام» لیکل شوی دی . ۲، ۳ - (ځنس) لیکل شوی .
۴ - «اسلام» لیکل شوی دا یې (سلام) مطلب دی

پنځه بنیا د دی مسلمانی — او وه صفته د ایمان دینه

او وه صفته د بنه خدای دی — چې په یوه بیت یا د شوی دینه

درې په غسل پنځه په اودس کښې — درې فرضه په تیمم کښې دینه

دیرش واره چې زده که — د خدای رحمت په هغه زړه وینه

دیرش فرضه روژې دی — او دیرش یې نیتونه دینه

که تاسی فهم کا نیء (۲۳ سخ) دیرش شپېته سره نوی شینه

او ولس رکعته نمونځ دی (۱) — دیارلس فرضه په نما نځه کښې دینه

څلور علمه څلور کتابه — څلور د رسول پیرې دینه

څلور مذهبه پنځه تکبیره — په ځینې قول هم یا د شوي دینه

نوی څلور یشت سره سل دیرش شی — مومنان دې سل دیرش واړه یاد ارینه

هرچې سل دیرش مسئلې زده که — سوال به د نمانځه پرې هسان (۲) تیرینه

په ځینی کتابو کښی دینه کښلی — هم ځینی اسامانو ویلی دینه

فرض واجب سنت یې روانه دی — باور کانیء حی نامه یې نه زده وینه

د سړیو کړی بویه — چه دا سرنهی نومونه زده کوینه

هر چی اسرنهی زده که — هغه دي اسرنهی نه که، امر دي کړینه

***

## مسکین ویلی دینه

## داسړی دې (یې) نغوږینه

د اوبو بیان به وکړم — چه سړی یې زده کوینه

چې له اوبو و پوښتینه — بل څواب یې کړای شینه

څلور جنسه او به دی له اسمانه (۲۳ سخ) باور کانیء څلور له زمکی دینه

داوره، واوری، ږلی، پرخوله اسمانه دی — رود، دریاب، چینه له کوهی، له زمکې دینه

هرچی اته جنسه او به زده که

ترودې پاکې، پلیتې، مشکوکې مکروهې زده کوینه

---

۱ـ مطلب یې فرض نمونځ دی ـ آسانې.

او دس په هغو اوبو روانه دی ‌ ‌ چه له و نې اهسیو ي نښتید لې و ینه

په هغو چی نورڅه په کښې ډیرشی ‌ ‌ چې د اوبو له صفته بي و باسینه

لکه شربت، سرکه یانورد ا هسی ‌ ‌ که په ا و بو کښې ا کثر شینه

که پاک څیزو رسره وزی پلیتې نه شی ‌ ‌ که یوصفت داوبو وجار باسینه

لکه نیز و بی یا لږه ز سی ‌ ‌ که سا بو ن زعفران یا یې و ینه

اود س غسل یی روا نه د ی ‌ ‌ که ابری وردید لی اوبه پلیتی شینه

پسه سړ یو فرض عین دی ‌ ‌ چه له خواب له پلیتی فهم لر ینه

که په روانو اوبو کی پلیتې پریوزی ‌ ‌ پلیتې نه شی که اثر د پلیتی څر گندنه وینه

دچهرچی یوروخ اوبه کـوروی ‌ ‌ بل روخ (یې) نه کـوړ ینه

کـه یـو رخ یـې پلیت شي ‌ ‌ بـل رخ دې یي پاکې گڼینه

که په کومی کښې یا په ابراوبه کښې هغه ومری(۲۵ سخ) چې روانه وینه نه لرینه

لکه ملخ، مچ غو مبسه لـړم ‌ ‌ پـه هغه اوبـه پاکې اوسینه

که هغه په اوبه کې و مری ‌ ‌ چې یی زیست په اوبو کښې وینه

لکه کب چونگښه په پلیت نه شی ‌ ‌ یا نو ر څه د ا هسې و ینه

که په کوهی کښې پلیتی پریوزي ‌ ‌ هغه اوبه دې د پاکی د پاره واړه و کارینه

که په کوهی کښې مرك سر غي ‌ ‌ یا نو رد ا هسې څه و مر ینه

له هغه دې شپینه په سو لا غ (۱) ‌ ‌ ا و به ر ا و کا ږ ینه

که په کوهی کښې سپی، ټالت ‌ ‌ یا نو ر د ا هسې څه پر یو ز ینه

پسه یا ستو رسړ ی چې پکښې و مر ی

واړه او به دې و کاږی یا که پکښې حیوان وپړ سیږینه

که کو هی زیندی وی واړه او به یې وسوړ کښې نه شی

څو پکښې هو سره یا له سو لا غ تیر سوو کا ږ ینه

که په کوهی کښې سړسړ ک یانوردا هسې سومی

پړ سو لې ا و به بو ی ناکې نه و ینه

نه یي ز ده وی چې کله پکښې پر یوت ‌ ‌ د یو یږشپې روځی نمونځ دې وجارباسینه

که پړ سو لی یابوی ناک وی(۲۶ سخ) ‌ ‌ د دریږشپی روځی نمونځ دې وجار باسینه

هر چې پـه څـه بـلـو سو لې وی ‌ ‌ هغه دې واړه پر یو ینځینه

---

۱ سلواغه.

د مړيو پر ښئون او د حلال څيز پاک دی

د نالت، د سپي او د نور ليوه دې پليت گڼينه

د پيشي د چرگک د مږ کک مکروه دی    او د نور دا هسی چې په کور کښې وينه

د خره د کچر پر ښئون شکوک دی

په هغو او بو دې هم او دس تيمم وکه که نورې نه مومينه

چې د او بو ترتيب زده نه که ــ ځان دې له پرهيزگار انو نه گڼينه

له پليتو او بو لکه پاکی حاصله نه شی    هسې له مشرکه پيره به پاکی نه مومينه

***

## مسکين ويلي دينه

## دا سړی دې يې نغوږينه

د استنجا بيان به وکړم    چې سړی «يې» زده کوينه

چې له استنجا يې پوښتينه    بل ځواب يې کړای شينه

نهه جنسه (۱) استنجا دی    چې استنقا استبرا هم پکښې دينه

په او بو پاکي استنجا په لوټه استنقاده

استبرا هغه ده چې زړه يې په پاکی **گواهی** وينه

د حيض د نفاس د غسل د پاره فرض ده    څلورم چې ځای زيات له درمه پليت وينه

که څو درم وی هغه واجب دی (۷ ۲ سخ)    که له درم کم وی سنت دې گڼينه

که پېښاب يې کړی وی مستحب دی    چې يې لس اندام اندام دې پر بوينځينه

د هتياتی (۲) د پاره دغه ده چې لر اندام سوښی    چې د خشک باد د پاره وکه هغه بدعت نومينه

او مکروه د استنجا د ادي    چې استنجا که مخ و کعبې وته کښېنينه

دويم چې بې عذره په ښي لاس استنجا که    درېيم چې په استنجا کښې خه وا يينه

څلورم مکروه دغه دی    چې دېر د شرم ځای وته گورينه

د و لس جنسه (۳) له زمکې    شپږ روا شپږ دې ناروا گڼينه

په خاوره په لوټه په کانی روا ده    په شړی په لرگی په زاړه چې له چا رويستلی وينه

په هډ به غوشا يه په خښته روانه دی    په سکاره په ښېښه نه په وابنه چې سبزی رينه

---

۱ ـ ۳ ـ (مخنس) ليکل شوی .ـ ۲ـ احتياطي.

که هغه نه مومی چه په روادی    تر و په نا روا هم مباح شینه
په خوردنی څیز حرام دی    چې په اندام پاکیزوینه
چې د شریعت استنجا زده که    ترو د طریقت، د حقیقت د معرفت دې زده کوینه
استنجا اغازدی د پاکی    مومنان دې په پاکی اغازوینه
هرچې امر نهی د استنجا زده که (۲۸ مخ)    استنجا به یې د هغه پس روا شینه
چې استنجا یې روا نه وی اودس یې نه شی    په حقیقت هغه کسان نا والی دینه
چې اودس یې روا نه وي    د هغو نمونځ مطلق نه شینه
نادانان کسان هغه دی    چې په نا روا بندگی کښی دینه

* * *

## مسکین و یلی دینه

## دا سری دې یې نغوږینه

د اودس بیان به و کړم    چې سړی (یې) زده کوینه
چې له اودسه یې پوښتینه    بل ځواب یې کړای شینه
دا اودس دی څلور جنسه (۱)    که د چا په باور شینه
فرض واجب سنت دی    څلورم دې مستحب گڼینه
د نمانځه، د سجده تلاوت د پاره فرض دی    او چې قرآن یې غلاوه واخلینه
واجب دی د هغه د پاره    چې د کعبې طواف په کړینه
سنت دی د خوب د کتاب د پاره    او چې زیارت د گورستان کړینه
او چې په مزدلک کښې ننوزی    پنځم چې قرآن په یاد لوینه
مستحب دی د خوړو د پاره (۲۹ مخ) او چې زیارت که د هغو چه علما دینه
دریم چې مړې و ینځی    څلورم چې د روغ و ایینه
پنځم چې غیبت وایی    شپږم چې په قهقه وخاندینه
فرض د اوس د غه دی    چې مخ دوه لاسونه له څنگلو پر یو ینځینه

---

۱. جنسه لیکل شوي.

څلورمه بخره مسحه د سر ده — دواړه پښې له بنګرو پر یو ینځینه

پنځم مسحه د ګڼې ږیرې — په هغو چې یې ګڼې ږیرې وینه

واجب د اودس دغه دي — چې اوبه وشو ته باڼه وسترغلې ورسوینه

او د ریم یې استبرا دی — چې زړه یې په پاکۍ ګواهي وائینه

څلورم چې اسراف په اوبه کښې نه که — پنځم چې له شیطانه زړه ژغورینه

سنت د اودس دغه دي — چې لاسونه له سر ونده پر یو ینځینه

دویم چې نوم د به خدای یاد که — دریم چې اوبه په خوله کوینه

څلورم چې مسواک په غاښو وهي — پنځم چې اوبه په خوله کښې کوږوینه

شپږم یې غړغړه دی — اووم چې اوبه په پوزه کښې باسینه

اتم هر اندام دري واره وهي (۰۳ مخ) — نهم چې د ږیرې خلال کړینه

لسم مسحه د غوږو دی — چې درون بیرون یې کړینه

مستحب د اودس نیت دی — او د تمام سر مسحه دې ګڼینه

دریم چې اندام په ناود (۱) باندې نوند که — څلورم چې داودس په ترتیب فهم ارینه

او مکروه د اودس دغه دي — چې په کیڼ لاس اوبه په خوله کوینه

دویم چه په ښي لاس پوزه پاکیزه که — دریم چې اوبه وسخ وته په زوره اچوینه

څلورم مکروه دغه دي — چې په اوبو کښې وتو کینه

هر چې امر نهي داودس زده که — اودس یې د هغه پس روا شینه

چې اودس یې روا نه وي — د هغو لمونځ دې هم تباه ګڼینه

هر چې «یې» لمونځ تباه وي — خپل دین دې روا نه ګڼینه

د یسن په مثال د کور دی — راحت په وران کور کښې نه مومینه

---

۱- دخیرالبیان په (۹۵ الف مخ) کې د (پښاود باندنوندك) په ځای (پښا نونده باندنوندهول) لیکلی شوی چې مطلب دادی: (پښوا له دې چې یوغړي وچ شی باید پر یمنځل شی) د لته هم همدغه مطلب ورته مراد دی .

## مسکین و یلی دینه
## داسری دیبی نغوږ ینه

داودس د ماتو ونی بیان به وکړم | چی‌سړی (بی) زده کوینه
چی داودس‌له ماتوونی‌پوښتنه (۱۳مخ) | بل‌څواب‌بی کړای شینه
بیا و رکا نیء عالمه | اودس په‌اولس توکه مات شینه
په متیاځی په‌هوس اوبه په‌سپیروبه‌شی | په‌سنگ ریزه یی هم‌مات‌شینه
پنځم په استحاره (۱) شی | چی‌داله‌و راندي رخه‌ووزینه
په‌وو، په گندگی، په‌چیم‌چی‌هم شی | چی له‌وروستی سور اخه‌ووزینه
په وینه په‌زوه په زیړبی شی | اویه د کنه خوله‌چی واچوینه
په لیونتوب په بیهوښی په‌خوب‌شی | که تکیه (یی) په‌څه کړی‌و ینه
په مستی په قهقه خنداشی | که په ظاهر نمو نځ کښی‌وینه
تیمم هم په هغه مات شی | چی‌اودس یی‌په مات شینه
بیرون چی‌هغه او به سوی | چی‌په خاکی «۲» یستلای شینه
چی ماتوونی داودس زده که | اودس دي وکا په‌هر توك چی‌مات‌شینه

* * *

## مسکین و یلی دینه
## داسری دیبی نغوږ ینه

د تیمم بیان به وکړم | چه‌سړی (بی) زده کوینه
چی له تیممه یی پوښتینه (۳۲مخ) | بل څواب یی کړای شینه
فرض د تیمم د غه دی | چی پاکه خاوره وغوا ړینه
دویم فرض یی ترونیت دی | دریم چی‌لاس په زمکی دو اړه‌ووهینه
یو واردي په مخ راکا ږی | دو یم‌وار دی‌په لاسونور اکاږینه
که لاسو نه یی پری کړي وی | مخ دي په‌دیوال یا په زمکي وسږینه
تیمم په هغه فرض دی | چي او به ور څخه نه وینه
چی یوه کروه لا رو ینه تدا سه | دده او داو بو په میان کښی وینه

---

۱- «استحاضه» ۲- «چار» لیکل‌شوی.

دري کروهه يو فرسنګ دی — اوکروه دي څلور زره ګامه ګڼينه
يا که هغه اوبه وی په خاکښې ويستلی نه شی — ترو دي تيمم که چې روا وينه
تيمم په جنب په حايضه په نفاسه هسی روادی — لکه په او د س ماتي رواو ينه
تيمم په زمکه روا دی — د زمکی په جنس«۱»دي هم روا ګڼينه
لکه، ريګ، کاڼی، ګرد — يا جامه چې په ګرد وينه
د زمکې جنس (۲) هغه دی — چې نه سو زی نه ويليږی هم سهرنه اخلينه
په تيمم دې هو مره لمونځ که(۳۳سخ)چې د لمونځ کړونی رضا وينه
د او د سې لمونځ روا دی — چې په تيمم پسې و ګذاروينه
تيمم د جنازې دعيد د لمانځه د پاره روادی — که وقت تنګ وی اوبه نه وينه
هر چې امر بهی د تيمم زده که — تيمم به بې د هغه پس روا شينه

* * *

## مسکين و يلی دينه
## داسړی دې يې نغوږ ينه

د غسل بيان بـه وکـړم — چې سړی (يې) زده کوينه
چې له غسله يې پوښتينه — بـل څواب يې کړای شينه
ديا راس غسله دی په شريعت کښې — پنځه فرض دوه دي واجب ګڼينه
څـلور پـکښې سنت دي — د وه دې مستحب ګڼينه
دا غسل پـه ادميانـو — پـه څـلور تـوکه فرض شينه
په منی په حيض په نفاس شی — څلورم چې اندام په اندام کښې داخل شينه
پنځم فرض غسل دغه دی — چې کافر جنب مسلمان شينه
واجب غسل چې سړی ئې ينځی — يا کافر چې جنب نه وی مسلمان شينه
سنت غسل د جمعې د عيد د عرفې دی(۳۴سخ) څلورم د هغه وقت چې احرام تړينه
مستحب غـسل دبـرات د شـپې دی
دو يم دوړکی«چې» بالغ شي يا پنځلس کاله په تير شينه

---

۱-۲ (ځنس) ليکل شوی.

نمونځ یې روا نه دی — څو په نجاست ککړ وي بدنه

په غسل کښې دا فرض دی — چې اوبه وخولې وپوزې وتمام تن ورسوینه

په غسل دې هتیاتی (۱) که — چې یو ویښته وچ نه پاتو شینه

تر هر ویښته لاندې جنابت دی — دا مې ښه رسول ویلی د ینه

واجب د غسل دا دي — چې شرمځای ښه پریوینځنه

د ویم چې له واره تنه — خو کړای شی پلیتی لرې کوینه

اودس په غسل کښې سنت دی — اوچې دځینو دایو هتیاتی (۲) کړینه

چې غوښتر گې نوم — شرمځای وچ نه پاتو شینه

مستحب دغسل خلال دغاښ، دنوک دی

چه اندام په لاس په او به ښه پر یو ینځینه

که په د رنه پلیتی زیات که درم پلیتی وی

وله یې فرض دی یا په سپکه زیات له نیم لستونې وینه

مقدار د درم وی وله یې واجب دی — که سپک څو نیم لستونې وینه

که له درمه کم وي وله یې سنت دی (۳۵ مخ)

که سپک له نیم لستونې هم کم وینه (۳)

که لا کم وی ترو مستحب دي — چې د هتیات (۴) دپاره پریونځینه

د سړ یو کړی بویه — چې درنه سپکه پلیتی دې زده کوینه

د رنه پلیتی ستیا ځی، وینه زوه — با داهسې چې (له) سریو ووزینه

شراب، گندگی د هغه حیوان، سرغه دی — چې (یې) غوښی حرامې وینه

د هغو مرغو گندگی دره پاکه — بې چرگک چې «یې» غوښی حلالې وینه

سپکه پلیتی د هغه حیوان ده — (چې) غوښی حلالې وینه

د سړیو پر ینبون او خوله دی پاک

دخره او کچر پس خورده دې مشکوک گڼینه

---

۱ - ۲ - احتیاطی . ۳- دخیرالبیان په (۶۵ ب او ۶۶ الف) مخونو کښې دسپکې او درنې پلیتې دپاره همدغسې معیار ښوول شوی دی.

۴- احتیاط.

داس پرېښون او خوله دې پاك سړی که جنب، حایضه مسلمان یا (۲) افروینه
په هغه (دې) اودس هم تیمم وکه که نور ړې او به دی نه مومینه
که په ښکاره پلیتی پلیت وی په لړې کول یې پاکیزه شینه
که خاورین (۱) خرسین، لرگین، کانی پلیت شی
هم لوښی یا پلازوینه
هغه په دری واره مسې پاك شي چې او به له ښاخکې (۲) ودرینه
که وسپرین سرولین یا تیغ پلیت شی (۳۶ مخ)
پاکېږي که یو وار «یې» پریو بوینځینه
په دا هم پاکیزه شی په خاورې په ایرې چې وسږینه
هر چی اسرنهی د غسل زده که غسل یې د هغه پس روا شینه
چه غسل یې روانه وی هغه که تل تل لامبی جنب وینه
په کتاب کښی د ینه کښلی دا سړې دي پتینه
که جامه کم له څلورسی برخې پاکیزه وی ـ نمونځ په روا دی که نوره جامه دی نه لرینه
هم چیا ونه ور څیخه «۳» نه وی چی هغه جامه په پرې وینځینه
که جامه نه وي نمونځ دی په اشارت په ولاړی یا په ناستی وگذارینه
په کتاب کښی د ینه کښلی برمنه دې نمونځ په آشارت گذارینه

## مسکین و یلی دینه
## داسړی دې یې نغوږینه

هغه نمونځ چې په سړی فرض دی اوولس رکعته په شمار دینه
د یارلس پکښې فرض دي څینی حکمونه څینی رکنونه دینه
که د چارضا وی چې دا نغوږی وربیان به کړم که د نمانځه حکم وینینه
چې له حکمه یې بو بیتینه (۳۷ مخ)
بل څواب یې کړای شینه

---

۱ ـ (خورین) لیکل شوی دی .

۲ ـ مطلب یې (له ځیدو) دی . ۳ «څیخه» هرځای «ځخه» لیکل شوی،

هر چې يو حکم خطا که
ترو به د هغو لمونځ تباه کيږينه

اول حکم پاکی د تن ده — دويم دې جامې پاکې ارينه
دريم چه لمونځ په پاکځای وکا — ترو د پاکځای شرط دې زده کوينه
پاکځای هومره اتکل شرط دی — چه پښې سر پرې ږدی سجده کښېنه
که واړه ځای پليت وی — بيرون چې سجده که يا پښې پې ږدينه
ترو د لمونځ کړو نی بويه — چې په هغه ځای دې ودرينه
که ځای پليت نو جن وي — ترو وچ ځای دی نه موميته
که په هغه ځای جامه واچوی لمونځ په روا دی — که يو رخ يې په نوشينه
که بل رخ يې هم په نو شي — هغه لمونځ دې نا روا گڼينه
که پاک وچ ځای نه مومی، — لمونځ دې په اشارت په کاڼی يا په نور خه وگذارينه
د شرمځای پټول حکم د لمانځه دی — چې لمونځ يې صحی (۱) شينه
د ميړه شرمځای له نامه له زنگانه دی — ولې نوم دې شرم ځای نه گڼينه
داورتې شرمځاي واړه تن دی (۳۸ مخ) لاس پښې د لمانځه په حق د شرم ځای نه دينه
د وينځې شرمځای له گردنه له زنگانه دی — سر، ليچې، پونډی د شرم ځای نه دينه
په شهوت کا ته وشرم ځای وته — په نامحرما نو حرام دينه
که څلورمه برخه د شرم ځای په تمام لمانځه څرگند وی — هغه لمونځ دې نا روا گڼينه
د مخ گرزول و کعبې و ته حکم د لمانځه دی — بله لمونځ يې صحی (۲) شينه
بيرون چې د خه ړ اروی (۳) — ترو لمونځ چې رضا وي هغه رخ و ته گذارينه
که د کعبې لوری و هير شی — ترو دې و پوښتی چې حضور وينه
او د کعبې بې پوښتنې لمونځ که — هغه لمونځ دې نا روا گڼينه
که هاله څوک حضور نه وی — چې يې و پوښتينه
ترو دې لمونځ که و هغه لور ته — چې د زړه باور يې شينه

---

۱، ۲ــصحيح.

۳ د «خه ړ اروی» پر ځای «دخه واروي» ليکل شوي دي خو معنا يې سمه نه ده. ځکه چې د ته «خوف» لمونځ مطلب دی.

کــه ز ږه یـې بـا و ر نـه کـه ترو نمونځ دېوهر رخ وته گذارینه

سجـد ه و خـد ای و تـه روا د ه د خدای هستی دې وهررخ وته گڼینه

فر ض نمو نځ بـې عـذ ر ه په تیځو نی با ندې نه شینه

که دا روی دسوا ره بو ده (۳۹مخ)

چې نیت که و کعبې وته دې مخ و جار باسینه

ترو د زړه په حضوری دې په سورلی نمونځ که وهرر خ و ته چې ځینه

نفل نمو نځ و هر ر خ و ته چې ځینه - هم دې نیت که هم دې نمونځ گذارینه

د نما نځه نیت حکم د نما نځه دی بله نمو نځ یې صحی(۱) شینه

و خت دې څر گـنـد لر یـنه صبا پښین که بل و خت وینه

د ز ړ ه نیت مطلق فر ض دی د ژ بې مستحب دې که پتیینه

که د نمونځ کړونی نیت وی چې پښین کړم

روا دی کـه ژ به بل وخت و ایینه

د ز ړ ه نیت دې سړی مطلق د ژ بـې لـه نیته بهه گڼینه

په بیړ ی نمــو نـــځ ر و ا دی په و لاړ که په نا سته یې وگذار ینه

که بیړی د کعبې له رخه وجا روزی نمونځ کړونی دې هم و کعبې وته وگرځینه

هرچه مخ د کعبې واوړو ته نه که هغه نمو نځ د ې نا ر واگڼینه

هرچې امام په ركوع کښې مو می ترہ دې تکبیر په ولاړ ه ووایینه

که تکبیر پــه و لا ړ ه ووا یـی امام په رکوع کښې نه موسینه

هغه رکعت یې نه شی (۴۰مخ) بودې بل هم وگذارینه

چې د نما نځه حکمو نه ز د ه که نمو نځ به یې د هغه پس روا شینه

* * *

## مسکـین و یلــی دینــه
## داسړی دی یی نغوږ ینه

زه به د ر بیان کړم د نمانځه ارکان څو دینه

---

۱ ـ صحیح .

چې له رکنه یې پوښتینه — بل څواب یې کړای شینه

هر چه یو رکن خطا که — د هغه نمونځ تروتباه شینه

حکمونه رکنونه دې په ځای که — هغه کسان چې نمونځ ګذارینه

اول ورسی تکبیر دی — چې الله اکبر دې وو ایینه

دویم قیام ولاړ دی — دریم یې قرات دی چې اولینه

څلورم رکوع پنځم سجود دی — شپږم وروستی ناستی دی چې کښېنینه

اول تکبیر وروستی ناستی فرض دی — په دې روایت یې له ارکانه ګڼینه (۱)

هر چې د نمانځه حکمونه رکنونه زده که — نمونځ به یې د هغه پس رو اشینه

هر چې نمونځ یې روانه وی (۱ م م خ) — بیهوده یې مشقت دی چې (یې) کړینه

• • •

## مسکین و یلی دینه
## داسړی دی یی نغوږ ینه

د نمانځه واجب به در بیان کړم — چې سړی (یې) زده کوینه

چې د نمانځه له واجب یې پوښتینه — بل څواب یې کړای شینه

با و رکا نیء عالمه — په نمانځه کښې دولس واجب دینه

ورسی چې الحمد لولی — دویم چې سورت ورسره باسینه

دریم په دوه وړسی رکعت کښې — چې قرائت څرګند لر ینه

څلورم چې ترتیب ژغوری — چې چار که چې یې وخت د چار وینه

پنځم تعدیل د ارکان دی — چې په رکوع سجود کښې قرار شینه

شپږم وروستی ناستی دی — اووم چې په دواړو ناسته کښې التحیات لولینه

اتم چې په سلام له نمانځه ووزی — نهم چې دعا قنوت په وترو کښې لولینه

لسم په ورسی تکبیر (کې) — چې د دوو عیدو تکبیر وایینه

یوولسم په صباح په نماښام په خفتن — چې امام په زوره ولو لینه

دولسم په نماز پښین په نماز دیگر — چې په و رو امام لولینه

چې نمونځ یوازې کاندی (۲ م م خ) — هغه کسان اختیار لر ینه

---

۱— مطلب یې پوره څرګند نه دی

په زوره يادې ورو لولى    ولې بهه دې چې دى هم په زوره لولينه
هرچې واجب د نمانځه زده که    نمونځ يې بې نقصانه رواشينه

* * *

## مسکين و يلى د ينه    داسې دى يى نغورينه

هغه څيزونه به د ربيان کړم    چې سجده په واجب شينه
چې له هغو څيز ويى پوښتينه    بل خواب يى کړاى شينه
باور کانئ عالمه    سجده په دولس تو که واجب شينه
ورسى چه د نامت په ځاى ولاړ شى    دويم چې دولاړ په ځاى کښينينه
دويم چې په زور دلوستن وخت وى    ترو په وروچې (يې) لو لينه
څلورم چې وخت دورو لوستن وى    ترو په زوره يى لولينه
پنځم چې د قراءت په ځاى دعا ولى    شپږم چې د دعا په ځاى قراءت لولينه
اووم چې نمونځ يى تمام نه وى سلام لى    اتم چې تمام وى سلام نه لينه
نهم چې الحمد په دوه ورسى رکعت (کې)    په څلور فرضو کښې سورت ولولينه
لسم چې په دوه ورو ستى رکعت کښې (۳ ه مخ)    چې الحمد يې وهيره شينه
يوو لسم چې تکبيرونه د دو وعيدو    به څرګند يې په و (۱) هير شينه
دولسم چې په وتر نمانځه کښې    د عاى قنوت تر کو ينه
هر چې سجده سهوه زده که    سجده دې و که په هر توک چې واجب شينه

* * *

## مسکين و يلى د ينه    داسې دى يى نغورينه

زه به د ر بيان کړم    هغه سنت چې په نمانځه کښې دينه
چې له سنته يې پو ښتينه    بل خو اب يې کړاى شينه
په کتاب کښې دينه کښلى    په نمانځه کښې اته ويشت سنت دينه
اووه په ولاړه او اووه دى په رکوع کښې    اووه په سجده او اووه په ناستى کښې دينه
هغه اووه چې په ولاړه کښې دى    دلاس هسکول دى چې تکبيروا يينه

---

۱-(په) زياته ده.

دویم چی ښی لاس په کین باندې نارینه په نامه، اور ته په سینه پر دینه
دریم چې نظر و سجده گاه که په سینه دې څلور گوتی ا ر تي لرینه
څلورم چې سبحانك اللهم لولی پنځم چې اعوذ بالله وایی ه
شپږم چې بسم الله وایی (۳۳ سخ) اووم چی له ضالین پسې نو رامین وایینه
هغه اووه سنته چې په رکوع (کې) دی

ورسی چی تکبیرو ایی چی رکوع ته ورځینه

د ویم چی نظر و پښو ته که در یم چې دواړه زنگنو نه ونیسینه
څلورم چی دري واره تسبیح وایی پنځم چی له رکوع پسی چی ودرینه
شپږ م سمیع الله لمن حمده دی چی ا مام دې و ا ینیه
ا و و م یې ربنا لك الحمد دی چی مقتد ی(یې) وا یینه
هغه اووه سنته چی په سجده کښی دی ورسی چی تکبیروایی چی سجده وته و رزینه
دو یم چی په ا و و ه اند امه سجده که

په لاس پښو په مخ په دو اړه زنگنونه یې گټینه
دریم چی دگوتو سرونه و کعبې وته که دواړه لاسه له تخرگه ارت لرینه
څلورم چې گیډه له ورانز گوښی ار ی او دري واره دې تسبیح هم ووایینه
پنځم چې سر ددوه لاسوتر میانه کیږدی او دی دې ښه فهم لرینه
شپږ م چی و پو زې و ته گو ر ي سترگې دې هم ر و نې لر ینه
ا و و م یی تر و جلسې د ی چی ددو وسجدو په میان کښینینه
غه او و ه سنت چه په ناسته کښی دی (۵۳ م)

ورسی چی کینه پښه پر یبا سی پر کښینینه

دویم چه ښی پښه په گوتو ولاړه لری دریم چې دواړه لاسه په ورا نو باندې پردینه
څلورم دگوتو سخ چې و کعبې و ته که پنځم چې نظر و سینې و ته لر یسنه
شپږ م چې صلوات لــو لـــی او و م چی سلام و ښي کین ر خ و ته لینه
هـر چې سنت د نما نځه ز د ه که نمو نځ به یې بې ملا متگی ر و ا شینه

## مسکین و یلی د ینه — داسړی دی یی نغوړینه

د نما نځه تباه کړونی به در بیا ن کړ م — چې سړی (یی) زد ه کو ینه

چې د نما نځه له تباه کړو نی (یې) پو ښتینه — بل ځو ا ب ( یې ) کړای شینه

ا ووه تبا ه کړ و نی د نما نځه د غه دی — چې د شر یعت چا ر نقصا نو ینه

که په قصد که گنا ه گا رشی — که په هیر که یا کښې نه و ینه

تبا ه کړو نی د نما نځه دی پنځه تو که — په لار دی ډ یر قول وګڼینه (۱)

پـه حـق د هـر نما نځه د ی — او په حق د هر نمازی چې نمونځ گذا رینه

اول (۲) خبر ې چې د سړی په دود که — په قصد که په و هیر ووا یینه

په قهر که په خو شې د ی ( ۳۶ مخ ) په خو ب یا که بید ا ر و ینه

کـه لـږ یـا ډ یـر خـه وا یـې — حقیـقی یـا حـکمی و یـنه

د و یـم ضـحک قـهـقه د ی — په قهقه هم ا و د س تبا ه شینه

در یم ډیر چار ده چې د ر ې وارې کا ندی — بیرون چې صلاح د نما نځه و ینه

ا و ( د ) نما نځه صلا ح د غه د ی

چې اود س دامام ما ت شی خلیفه دې ونیسینه

یا نمو نځ کړ و نی چې نمو نځ کـه

په نما نځه کښې د سار په وژ له مشغول شینه

څلورم چې د نما نځه فرض بې عذره تر ک که

پنځم چې په قصد ا و د س د ی ما تو ینه

چې تبا ه کړونی د نما نځه زده که — نمونځ دې له تبا ه کړو نی وژ غورینه

چې تباه کړ ونی د نما نځه زده نه کا (۳) — نمو نځ تبا ه شی خبر نه و ینه

---

۱ ـ مطلب یې پوره څرګند نه دی.

۲ ـ د ( اول ) په ځای (او) لیکل شوی خو له یوې خوا دلته د عطف (او) معنا نه ورکوی او له بلې خوا له ورو ستی شمیره ښکاری چې ( اول) دی نه (او).

۳ ـ (زد کا) لیکل شوی ښایی اصلا (زد ه نه کا) وې چې (نه) په سهواً پاتې شوې وی.

## مسکین و یلی دینه    داسې دی یی نغوړینه

زه به د ربیا ن کړ م په څر ګند    چې د نمانځه مکرو ها ت د ینه
چې له مکر و ها تو یې پو ښتینه    بـل ځوا ب یې کړ ای‌شینه
و ړ ی چې لوبه له تن له جامه که    د و یم چې ا ر ږ سینه
د ریم د ګو توتکول دی (۳۷ مخ)    څلو ر م تـکیه کـــه پټیینه
پنځم چې نظرو ښی کیڼ رخ وته کا    شپږ م لکه چې یا پلتی یې عذ ره کښینه
اووم چې له اسامه وراندې رکوع یا سجده که
ا تم چې سر له ا سا مه و ړ ا ندې کوینه
نهم چې وراندې صو رت دحیوان وي    لسم چې ځـا ی بر ا بر نه و ینه
یولسم چې په وچه سپکه پیلتی پایت وی    دو لسم چې ځا ی ګور ستان وینه
چې د نما نځه کرا هت ز د ه که
هغه د ې له مکر و هات هتیات (۱) ا و سینه
هر چې نمو نځ ظا هر په ځا ی که    هغه د ې با طن هم په ځای کوینه
پـه قـرآ ن ښـې د ینـه کښلی    دا سـې د ې پـتینه
هرچې روا نمو نځ ز کا ت په ځا ی که
لا خوف علیهم د وی د ې هیڅ اندوه نه کړ ینه

* * *

## مسکین و یلی د ینه    داسې دی یی نغوړینه

هر چې علم د نما نځه ز د ه که    تروعلم دحیض دنفاس (دې) زده کوینه
چې له حیضه له نفاسه یې پوښتینه    بل ځوا ب یې کړ ای شینه
لږ حیض دې د رې شپې ر و ځې    ز یا ت دې لس شپې رو ځې ګڼینه
که دچالس یا ا ووه روځې عادت وی (۳۸ مخ)
یوواریه د رې یا پنځه کښې وینه ود رینه
غسل ا و نمو نـځ دې و کـه (۲)    د میړ ه صحبت دې نا رړوا ګڼینه
په یو عا د ت (دې) نه ا و سـی    څو اس یا اووه ورځې تیر یې شینه
عادت جار واته یوواري بس دی (۳)    که په کتا ب سو با و ر شینه

---

۱ـ احتیاط. ۲ـ (ز ده کا ) ایکل شوي . ۳ ـ دخیر البیان په (۹۲ ب) مخ کې دامسئله داسې ده (دادت جار واته یووار بس دی عیا ن )

کله د چا علت روان وی　　پنځلس په پاکی لس دې حیض شمیرینه

زیات نفاس دی څلویښت روځې　　او لږ نفاس تر وحد هم نه لرینه

که د اور تیز همن و زیږی　　په هغه ساعت شی پاکه چې وینه ودرینه

که څلویښت روځې وړاندې　　د چا وینه و درینه

غسل نمونځ روژه روا دی　　دمیړه صحبت دې نا روا گڼینه

بې بندگی دې نه اوسی　　څو څلویښت شپې تیرې شینه

که څلویښت شپو پسې بیاو وینی　　هغه وینه د غلطه (۱) دې گڼینه

هرچې خبر شی له حیضه له نفاسه　　هغه دې په کړو که چې امر وینه

په قرآن کښې د ینه کښلی　　د اسړی دې پټینه

نزدیکی دې له اورتو سره نه که (۹۴۴خ)　　څو له حیضه له نفاسه پاکې شینه

په حلال کښې حرام هوی دی　　چې په حیض په نفاس کښې نژدې شینه

***

## مسکین و یلی د ینه　　داسړی دی یی نغوړینه

هرچی علم دحیض دنفاس زده که　　ترو علم د روژې دی زده کوینه

چی له روژې یې و پوښتینه　　بل ځواب یی کړ ای شینه

دریم د ایمان عمل د روژې دی　　چی روا روژه دې وار ینه

پر پیغمبرانو چی روژې فرض دی　　هسی پر مؤمنانو فرضې د ینه

د یرش فرضې روژې دی　　د یرش په د یرش نیته و نیسینه

د مسلمانانو کړی بو یه　　چی شپیته واره پاد ار ینه

نیت د روژی د ادی　　هر چی (یې) زده کوینه

وایې دې گاهنده (۲) به فرض روژه لرم　　که خدای سی حیات په خپل فرمان لرینه

---

۱ - (غلطه) لیکل شوی .　　۲ - گاهنده - سبا، د (به) په ځای (په) دي؛

په روژې دې نه خوری نه ښئی نه دې صحبت که    له حرا سو دې ا ندام ارې لرینه

* * *

**مسکین و یلی د ینه    داسې دی یی نغورینه**

دروژې اجـربـه و کـړم (۵۰ سخ )

هر چې روا روژه زما له پاره و لرینه

هر چې د روژې امر نهی زده که    روژه به یې د هغه پس روا شینه

هر چې امر نهی دروژې نه زده    په ما نند هغه د ځا روی د ینه

چې په غیل کې مشقـت کـه    او خوله بې هم تږ ای و یـنه

لـوږه تـنده یـې جـز ادی    که نوره جز اغواړی نه مومینه

چـې روژه یـې روا نـه وی    تش د رماندگی (یې) بخره وینه

ما په پښتو دی بیـان کـړی    داسې په کتاب کښې کښلی دینه

هر چـې لـه روژې مـنکر وی    هغه ترو امتی دده نه دینه

هر چې ظا هر روژه پر ځای که    هغه دې باطن هم پر ځای لرینه

* * *

**مسکین و یلی د ینه    داسې دی یی نغورینه**

دزکات بیـان بـه وکـړم    چې مسلما نان یی زده کو ینه

چې له زکا ته یې پو ښتـینه    بل ځوا ب یی کړ ای شینه

څلورم دایمان عمل زکا ت دی    چه روا زکا ت و با سینه

زکا ت په هغه فرض دی (۵۱ سخ )

هر چې په مال توا نگرا ن و ینه

چې ازاد عا قل با لغ مسلم وی    تروزکات د مال دتن دایمان دې وباسینه

نه دې و باسی دو نړ کې یالیو نی    نه بند هگان (۱) چې ازادشوی په مال وینه

حساب د ې نه که په مال کښې کورنه جامه ا غوستن

نه هغه خریان جې د تیخ و ینه

---

۱-د(بندگان) په ځای(بند کا) ایکل شوی دی.

نه لیږ دی نه جوتی نه دژواک بنده

نه داورتی پسول بیرون که او ړی د زر وو ینه

سپین زر یو ځلو یښتم مثقا ل دی  که زیړ زروی دشلودې نیم مثقا ل گڼینه

اوله زیړله سپین ورسره دي وشمیري  بها د هغه کالی چی د فر وخت وینه

که میوه یي تر کا له پورې ورسی  بی لرگی بی نله بی سوزی چی وابنه وینه (۱)

اوهرچی له زمکې وزیږی لسم دې باسی  نور(۲) اوبه دا سمان په اوبه چی پاخه شینه

که میوه شی پنځه باره او باردې شپیته وی  اوړی اته سیره دې سیر دې شل ستاره گڼینه

چی د کوهی په اوبه پیداشی شلم دې ور کا  له پوسې لسم د ې که پنځه خروا رغله بهاشینه

(۳)له شاتو دې هم لسم ور که  که په پاد شا هی زمکه کښې نه وینه

په کتا ب کښې د ینه کښلی  له خرا جی زمکې لسم نه و باسینه

که دچاشل ځاروی کال په تیرشی(۴) (۵ مخ)

تر دیرشو پو رې زارې واجب شینه

که ځاو یښت شی بووا رې دې ور که  تـر و دې تر شپیتو پو ر ې و گڼینه

که شپیته شی تر شپیتو پورې دوه زارې دی  له اویا زارې یو بوا رې دې تر اتیا و پورې گڼینه

له اتیا ترنهه اتیا پورې دې دوه بوارې دې ور که

که نوی شی ترودې زارې تر نوی پو رې واجب شینه

---

۱ــد خیرالبیان په (۳۰۱ ب مخ) کښې دا مسئله داسې ده (بې لرگی بی نله ــبې ونبو بی زرغونکی عیان) «یعنې د سوزی سابه، په عوض د زرغونکی» دی.

۲ــلمر.

۳ــ دخیرالبیان په (۳۰۱ ب مخ) کښې دا مسئله دا سی د ه له پنبې که دپنځه خروا ره غلې بهاشی لسم دې وباسی)

۴ــد خیرالبیان په (۳۰۱ الف مخ) کی دا مسئله دا سی ده (شلو ښت یو اری دی دشپیتو دوه زارې دی په تو انگر ان).

۵ــ(ر) په رساله کښې پاتې ده خو په خیرالبیان ۳۰۱ ب مخ کښې (درې) دی.

که سل شی دوه زاړی یو بواری دې ورکاـ ترو په هراس پسې زاړی، بواری واجب شینه(۱)
که د چا خلویښت پسونه کال په تیر شی - یو پسه یې تر سلو شلو پورې زکات شینه
که یو زیات شی ترو دوه تر دوه سوو پورې واجب شینه
که له دوه سوه زیات شی ترو د(ر)ې(۲) ترتیرسو پو رې واجب شینه
که څونسو شی څلو ردې ورکه ترو په هر سل پسی(دې) یو یو زیاتوینه
که د چا پنځه اوښان وی کال په تیر شی یو پسه یې تر نهو پو رې زکات شینه
که لس شی دوه دې تر څوارلسو پورې ور که
که پنځلس شی ترو دری(۳) ترنولس پو رې زکات شینه
که شل شی څلور دې و رکـه ترو تر څلر ویشتو پور ې دې ګڼینه
که پنځه و یشت شی زاړی دې ور که تر و پنځه د یرش پو ری دې ګڼینه
که شپږ دیرش شی بواری دې ور که اوتر پنځه څلو یښتو پو ري دې ګڼینه
که شپږ څلو یښت شی دوه غاښی دې و رکه(۵۳ مخ)
ترو د ې شپیته پو رې ګڼینه
که یو شپیته شی څلورغاښی دې و ر که
ترو دې پنځه ا ویا پور ې ګڼینه
که شپږ اویا شی دوه دوه غاښی دې و رکه
تـر و د ې سـل شلو پـو ر ې ګڼینه
د ا و ښا نو ز کا ت د یر د ی
دانور دې هسی ګڼی چې ا سر و ینه

---

۱ــ د خیرالبیان په (۳۰ ۱ مخ) کښې دا مسئله داسې ده (اوله سل دوه زا ړی یو بور ای دی ترو په هرلس زاړی بواری واجب شینه ....)

۲ـ۳ـ د(د رې) (ر) سهواً پاتی شوې ده د خیرالبیان په (۱۰۵ الف) مخ کښې دامسئله داسې ده (په پنځلس کښې درې دې ور که شل او ښان شی تما م).

که څوک اس یا اسپې لری کال په تیر شی

دهرخریان دپاره دینار دې ور کوینه

یادې بها کاله د وه سوه درم دې     پنځه د رسه زکات ګنینه

نشته زکات د آس دکچرنه د خره     بیرون چی د سودا د پاره وینه

زده کانه چې زکات په چا روا     او نارروا چی په چا وینه

چی کم دارنادا روی په هغوی روا دې     اوچی لږ خواره وچا پادشاه ور کړي وینه

او وهغه بنده چی په مال ازادوی     وهغه چی دکور له ماله ګوښی وینه

نه دې وهندوور که نه دې په مزدک روغ که

نه دې په کفن کا نه دې په بږده از ادوینه

نه وپلار ونیکه نه وزهمن ونمسی     نه وهغه هرڅو پورته کښاته وینه

نه میره واورتی نه اورته و میره     نه تښتن وهغه بنده چی په مال ازاد کړي وینه

نه وبږده نه وزهمن چی دتو انګروی «۳۵مخ»

نه وها شمی و جعفری دې ور کوینه

نه و عقیلي وحارثي چی زهمن دسطلب دی

نه دی ور که و هغه چی روا نه وینه

که په داګومان څوک زکات ورکه چی فقیر دی

تر و خبرشی چی توانګر، ها شمی یا کافروینه

که یی پلار یازهمن وی بیا دې نه ورکه

بیرون که بنده وی په مال ازاد کړی وینه

مکروه دی چې له یوه ښهره     و بل ښهر وته زکات وراستوینه

بیرون که په هغه ښهر ده اه قراباتو     څوک فقیر زهیر درما نده وینه

هر چی زکات نه بسا سی عاصی شی     که واړه مال با زی نه قبلیږ ینه

هر چی منکر شی له زکاته     هغه تر و په څرګنده کافر شینه

---

۱ ـ د(نیکه) په ځای نکه ایکل شوی.

سر سا یه پـه توانگرانـوده و ا جـبه    چی دځان د کم زهمن دبرده دپاره او سینه

نه دي‌با سی‌داورتی‌نه‌دلوی‌ز همن‌دپاره    نه دهغه بر ده چی په سال‌ازاد کړی‌وینه

نه دهغه دپاره چی په بازا رگانی وی    نه‌د هغه‌برده‌چې داد میانوشریک‌وینه (۱)

سر سا یه اوړی ور بشی‌یانیم‌من‌غنم دی    یـا بـها دي و فـقیرا نو و ر کـو ینه

ا و ړی د عـرا ق پـه سیرا تـه دی    سر سا یه دي په‌نور (۲)و خاته‌و با سینه

هر چی له د غه‌ېخوا و سری یا وزیری مسلما ن شی (۵۵ مخ)

پر هغه ترو سر سا یه‌وا جبه شینه) (۳)

ثواب دی چی سر سا یه‌دعید‌په‌رو ځې    په‌نور و خاته‌له‌نمانځه وړا ندی‌او سینه

ځو یی لا سر سا یه نه و ی یستلی    د رو ژ ی ثـوا ب یې معلق و ینه

## مسکیـن و یلـی د ینه
## داسې ی‌دی‌یې نغو ر ینه

دحـج بـیا ن بـه وکـړ م    چې سړی(یی)ز ده کوینه

چـې لـه حجه یې پو ښتـینه    بل ځواب یی کړای شینه

پنځم‌عمـل دایمان حج دی    چی روا حج دی وگذا ر ینه

دحج‌گذاردن‌په‌مسلمان‌فرض‌دی    په‌ازاد‌عا قل‌چی با لغ وینه

چی‌ځاروی‌تیځونی‌اودکهله خرخ یې‌وی

اوچی دحج‌په لار اسان وینه

د مسلمانـانـو کړی بـو یه    چی حج دخدای‌دپاره وگذارینه

حج د يېنه گذاری ځره او رتی    بیرون‌چی‌محرم کسان ورسره و ینه

دحج‌گذاردن په هغوهم‌روانه‌دی    چی‌ورسره دمد ینی محرم نه وینه

---

۱ ـ مطلب ور نه هغه سر یی دی چه د ځوکسو تر منځه شر یک وی دخیز البیا ن په(۷۰ ا ،ب مخ ) کې‌دا مسئله‌دا سی د ه ( نه دهغه بړ ده چی‌شر یک وی‌په‌میان دا د میا ن ) دلته (دامیان) لیکل شو یدی.

۲ـلمر. ۳ ـ د خیرا لبیا ن په( ۱۰۸ ا لف) مخکی لیکی چی په دغو کسا نو سر سایه وا جبه‌نه ده. د رسا لی مسا له سم ده.

هر چې د کعبې زيارت تروو که　　هغه دې بدي، ګناه، نښتي نه کړينه
هرچې له بدی له ګناه له نښتي و دريږي (٥٦ مخ )

هغه د حج ثواب به بيا مومينه

دابرا هيم مقام به يې روزي شي　　چې د ايم امان به پکښې وينه
هرچې له بدی له ګناه له نښتې نه دريږی　　خپل حج دې دعيسی دخره دحج مخی ګڼينه
په کتابو لښلی به د کعبې زيارت که　　په کور د خره به له خره شميرلی وينه (١)
به کفر ه دې و مسلي　　هر چې به منکر له حجه شينه (٢)
د اسلام پنځه بنيا ده دا دي　　مسلمانان دې د کړو د پاره زده کوينه
چې داسلام پنځه بنيادو زده نه که　　ځان دې له مسلمانانو نه ګڼينه
د مسلمانانو کړی بويه　　چې د ا پنځه بنيا ده ياد لرينه
ترو چې روا دی هغه دې کاندی

او هغه دې نه که چې روا نه دينه

هر چې زده که پنځه بنيا ده　　ترونوسو نه دکتابو دې زده کوينه
د خدای کتابونه ډير دی　　د څلورو کتابو نومونه څرګند دينه
تورات په لوز(٣) دعبرانی　　وموسی وته خدای رسولی دينه
انجيل په لوز دسريانی　　وعيسی وته نبه خدای بخښلی ونه
زبور په دلوزد يونانی(٥٧ مخ)　　داودوته خدای استولی ونه
فرقان په لوز د عربی　　و محمدوته خدای نزول کړی ونه
صلوات رحمت پــه دوی　　زيات نبه خدای ويلي وونه
چې نومونه د کتابو زده که　　ترو دې څلور پيږی زده کوينه

---

١ـ نبه نه او ستل کيږي د( کعبې) نه دنسخه (خ) ليکل شوی نبايي(د)وي اود(به) پره ځای(بی ) ليکل شوی دی.

٢ـ دا سی ليکل شوی (اکفر بی دومل ـ هر چه ... )خوداعبارت بی معنا دی

٣ـ څلور واړه ځايه(لوز)ليکل دی .　٤ ـ (يونانی) هم لوستل کيدای شی.

محمد د عبد الله و عبد الله د عبد المطلب وینه

عبدالمطلب د هاشم و او هاشم د عبدالمناف وینه

هر چې خلور پېړی زده که - تروخلور«۱»مقامه او کلیمه دې زده کوینه

هر چې خلور(۲)مقام او کلیمه یې نه زده
د فقیری لقمې په حرامې دینه

شریعت ، طریقت، حقیقت دی
خلورم دې معرفت گڼینه

د شریعت کلیمه دا ده
دا سړی دې یې پتینه

لا اله الا الله
محمد رسول الله چې وائینه

د طریقت کلیمه دا ده
سالکان دې یې نغو ږینه

لا اله الا الله عظمته
محمد رسول الله خلیفه ووایینه

د حقیقت کلیمه دا ده «۵۸مخ»
صادقان دې پتیینه

لا اله الا الله بید قدرته
محمدرسول الله برسالته چې ووائینه

د معرفت کلیمه دا ده
عارفان دې با ورکړینه

لا اله الا الله حقاً حقاً
محمدرسول الله صفاً صفاً چې ووائینه

په فقر نامه کښې دینه کښلې
دا سړی دې یې نغو ږینه

چې خبر وی له اته مقامه
هم عمل یې په کړی وینه

په اتفاق مشایخانو دې ویلی
روا دي څه توبه دې ورکوینه

اول مقام دی د تائبانو
تائبان دي له گناهه جارو زینه

هر چې له گناهه نه جارو زی
په وینا به تائبان نه شینه

چې تایب شی له گناهه
تائبان به له ادمه سره وینه

دو یم مقام دی د عابدانو
عابدان دې په اخلاص بندگی کړینه

هر چې په اخلاص بندگی ونه که
ځان دې له عابدانو نه گڼینه

عبادت په اخلاص کانه
عابدان به له ادریسه سره وینه

---

۱ - ۲ - د (خلور) په ځای (خلو) لیکل شوی دی .

دریم مقام دی د زاهدانو «۹ مخ»  زاهدان دي له دنیا سینه کمو ینه

هرچي سینه له دنیا ده  په زهد کښي خیر نه ګنیینه

چي رښتیني زاهدان شي  زاهدان به دعیسی له توری وینه

څلورم مقام دي د صابرانو  صابران دي په بلا صابراو سینه

چي په بلا یي صبر نه که  ځان دي له صابرانو نه ګنیینه

چي په بلا یي صابرا وسي  صابران به دایوب په صف کښي وینه

پنځم مقام دی، د راضیانو  راضیان دي په قضا راضي او سینه

چي په قضا یي راضي نه وي  هغه به له راضیانو ګوښي وینه

چي په قضا یي راضي شي  راضیان به له موسی شمیر لی وینه

شپږم مقام دی د محبانو  محبان دي د محبت په نغوته کښي اوسینه

هرچي د محبت په نغوته کښي نه اوسي  د محبت دعوی یي دروغ دینه

چار د خدای په نغوته کانه  محبان به له ابراهیمه سره وینه

اووم مقام دي د شاکرانو  شاکران دي په شکر کښي او سینه

(..د رسالې نوره برخه نه ده موندل شوی.)



**اټکل** : ( اندازه ، مقدار)
قاموسونو د (تخمين) په معنا اخيستي دي .

په رساله کې:
خداى هسې قادر دى- چې په اټکل يې واړه چارې کړى دينه (٦ مخ)
پاک ځاى هوسره اټکل شرط دى -چې پښې ،سر پر پړدى سجده کښينه (٣٧ مخ )

په خيرا لبيان کې:
پاکي دتن ،دجا مې ، د ځاى له پليتى شرط ده دنمانځه ددرستوالى له پاره په ادميان ،هو مره اټکل چې سجده کـه اوږې کيږ دى اقـدام (٨ ٦ ـ الـف مخ)
اوبايزيد ه !دخپلې پوهې په اټکل يې وکښېناسته م (٩ـ الف مخ).

**اچول**( کښه کول ،قې کول )
په رساله کې داودس ماتو ونکې بحث :
به وينه په زوه په زير بې شي.
اوپه ډکه خوله چې وا چوينه (٣١ مخ )

په خير البيان کې داو دس ما توو نکو بحث :
په وينه په زود په زيړ بې ،په ډکه خوله چې واچوى ..(٦٢ب)
بل ځاى د ا سې راغلى دى .
چې په قصت(قصد)وا چوى روژه يې ساته شى 'يود ې قضا ولرى ولى کفا رت بې واجب نه شي - په تاد ې وى اعلام (٩٨ ـ ب)
خوشحال ختک په همد غه معناد بازدناروغى په باب راوړى دى :
طعمه ا چوى ، طلب دا و بوډ ير کا—تو ر پيخا ل کا ندى دلو يو په مثال (کليات ١٦٨ مخ).

**اروېمل** :(خوله وا زى کول'فاژه کول) پښتو قـاموس(اروېس،اروېمئ =په درنده او خر گند، (يى)اخيستى،خوپه ننگرهار 'پکتيااو دپښتنو په زياتو سيمو کې ( ار ږ مى (په نرمه يې)دي دفعل په صورت بل ځاى زما په نظر نه دى راغلى . درسالې په (٦٣) مخ کې د فعل په صورت دنـانځه دمکروها تو په بحث کې داسې راغلى دى :

# د رسالی ویی پانګه

## « لغتنامه »

ترتیبوونکی

ښیږ نوال دوست محمد «دوست»

ورسی چې لوبه له تن له جامه که ـ دویم چې وار پرمینه.

خیرالبیا ن **:** په همد غه مساله کی د اسم ذات (اوربسی) په صورت راغلی **دی:**

سکروهات دلمانځه لو بده له تنه له جامې، له سره اؤ اربسی . . .(۷۳- الف سخ )

**اودس ما تی** (بې اودسه، هغه څو ک چې او د س نه لری).

د صفت په ډ ول ، په رساله کې:

تیمم په جنب ، په حا یضه ، په نفا سه هسې ر و ادی ـلکه په ا و دس ماتی روا وینه (۳۲ سخ)

په خیرالبیان کی:

تیمم په جنب ،په حا یضه ، په نفسا با ندې هسې رو ا دی چې په او د س ما تی کسانو ... (۶۱ ب سخ )

**اودسی:** ( او د س لرونکی ، هغه څو ک چی او دس لری .)

په رساله کې :

داو دسی نمونځ روا دی ـ چې په تیممی پسی وگذارینه (۳۳ سخ )

په خیرالبیان کی : داو د سی نمونځ په تیممی پسی روا دی (۶۲-الف سخ )

**اوړی** ( دغلو او دانو داند ازه کولو یو لرگین لوښی دی چه په عر بې یی (صاع) بولی (ظفر اللغات د(اوړی) په با ب لیکی چې په مختلفو ځا یو نو کې د اوړی مقد ار سختلف وی. په رساله او خیرالبیان کې داوړی داندا زې د معلو مول په (دعراق په سیر،دنبې په اوړی) مقید دی چی هغه شر عی صا ع ده. ا بو حنیفه ا و عراقیان یو صاع داته رطله سره مساوی گڼی (هررطل تقریبا نوی مثقا له دی) اما م شافعی او حجازیان پنځه یو پر دری رطله دیوه صاع سره انډ ول بولی چې پنځه پاوه کیږ ي او همدغه دنبې اوړی او دمر سایې همدغه اندازه معمو له ده (دخیرالبیان قاموسی برخه) :

په رسا له کی :

سر سایه او ړی و ر بشی یا نیم غنم د ی:

یا بهادی و فقیرا نو و ر کو ینه .

اوړی د عراق په سیر آته دی ـ سر سا یه دی په نور(نمر) خاته وباسینه (۳۵ سخ) که میوه شي پنځه باره او بار دی شپیته وی ـ اوړی آته سیره دی، سیر دې شل ۵ تاره گڼینه (۵۱ سخ)

په خیر البیان کې:

سرمایه یو په اوړی ور بشی ، یا نیم غنم یا بها دې و ر که و فقیر ان ، اوړی اته سیره په سیرد عرا ق عیا ن ( ۱۰۷ ب مخ )

بل ځای : که سیو ه شپیته باره‌شی با ر شپیته په اوړی دی د نبی په او ړی علیه السلام او اوړی اته په سیردی او هر سیر په دروندوالی دو ه شله ستا ر ې ( ۱۰۳ ب مخ )

د ( او ړی ) کلمه په پښتو کلا سیکو متـو نـو کـې ځو ځا یه را غـلی د ه!

په چا د اد په‌لپه، نمنځ کوي فلکه ـ په چالونې په اوړیو په چمبونه ( خوشحال)

چې په‌تله خه تلل شی ــ یا په ا وړي ها یمل شې ( خوشحال ـ فضل نـا مـه)

که په لړوی که په‌ډیروی ـ که په‌اوړی که په‌سیروی.. (حمید ـ شرعت الا سلام)

سرمایه په هر سړی باندې واجب ده نیم اوړی د غنمو یا نیم او ړی د اوړو یا یو اوړی دخر ما یا اوربشو چې ددې‌و خت په ا و ړی هغه نیم او ړی حساب شی دو ه تر یهاو ه اوهغه اوړی چې دا اوړی څلور تر یها و ه

(فوایدشریعت دسر سایه‌مبحث )

**بار:** ( د و ر ی ، خته ، پیتی )

په روښانی رساله او خیرالبیان کې ورنه خـاص تول مطلب دی چې د کابل په تیره ( ۱۸ )سنه‌او (۱۲ ) پاوه کیږی.

په رساله کې داسې ر اغلی‌د ی.

که سیوه شی پنځه باره او بار دې شپیته‌وی .

او ړی آته سیره دې، سیر د ی شل ستا ره گنیینه ( ۵۱ مخ )

په خیرالبیـان کې‌همدغه مطلب داسې د ی .

با ر شپیته په او ړی دی د نبی په او ړی علیه السلام (۱۰۳ ـ ب مخ )

## بلوسول:

۱ ـ ( نښتل ،لگول ، ) ۲ـ(تیری پرې کول، تعرض کول)چې‌متعدی‌دی او لازمی فعل یې ( بلوسیدل ) دی خو پـه رساله او هم په خیرالبیان کې د لازمی په‌ځای

دستعدی په بڼه راغلې دی همدارنګه دپرسیدلی په ځای ( پړسولی )

په رساله کې :

که په کوهی کښې سړ سرك یا نور داهسې سوسی-پړسولی ، او به بوینا کې نه وینه نه یې زده وی چې کله په کښی پریوت -دیوې شپې روځې نمو نځ دې وچار باسینه هرچې په څه بلوسولی وی - هغه دې واړه پریوینځینه ( ۲۶-۲۰۷ مخونه)

په خیر البیا ن کې:

که په کوهی کښی سړ سرګ یاسرغی یانور څه هسې موسی پړسولی، بوینا ګ نه وی او نه یې زده وی چې کله پر پوتلی دی-دیوې شپې رو ځې نمونځ دېوچار باسی که پړسولی یابویناك وی هرچې یې او دس په کړی وی یا په څه بلو سولی وی هغه دې پریوینځی عیان(۳ ۶ ب مخ )

**بله :** (به هله) (هله به) : په رساله کې دوه ځایه (۳۸ مخ) پنځه کرښه (۳۹) څلو رمه کرښه، او په خیر البیان کې شو ځلیه لکه (۱۸ — الف ۵ کرښه ، ۳۵ ب ، مخ ۵ کرښه).

په رساله کې :

د نمانځه نیت حکم د نمانځه دی .بله نمو نځ یې صحی شینه (۳۹ مخ )

په خیر البیان کې :

دبر غو په و ړ سی او از به و اړ وژ وی ژ و ندی کړم بله ګو ری خپلې ناسې ته ادسیان. (۳۵ ،ب مخ).

**بواری** (دوه کلن سخوند ر) پښتو قاموس اخیستی .

د رسالې د زکات په بحث کې داسې راغلی دی.

که دچاشل څاروی کا ل په تیر شی *ته (تر) دبر شو پورې زاری واجب شینه که څلویښت شی بواری دی و ر که *ترو دې ته (تر) شپیتو پورې و ګنینه (۵۲ مخ )

په خیرالبیان کې :

که دیرش (څاروی )شی هاله ګوښی زاری د ی که کا ل پې تیر شی تمام ،

دغلوینبتو بواری دي‌دشپیتودوه زاړی دي (۳۰۱- الف )

له‌اویا و ز اړی او بواری ،له‌اتیادوه بواري‌دی . . . (۳۰۱ - ب)

**بیرون:** دغه کلمه چي د ( بهر ،دباندي ) په معناده پ رساله او خیر ا لبیان کي د(پرته ،غیر،مستثناء ) په معنا ز ښته ډیره راغلی ده.

په رساله کي :

حساب دي نه که په سا ل کي . . . .

نه د ا و رتي پسو ل- بیر و ن که ا و یږ ی د ز ر و و ینه ( ۵۲ مخ )

نشته زکا ت داس نه د کچر نه دخره - بیرون چی دسوداله پاره وینه(۵۳مخ)

په خیرا لبیان کي:

حسیب‌دي نه که په حال کي ... نه داورتي‌پسولي‌بیرو ن له اوږی (۲ ۰ ۱ ب‌مخ)

نشته زکات داس نه د کچرنه‌دخره -بیرون که دبازرگانی‌وی عیان (۵ ۰ ۱ ب مخ)

**پر ینبون:** د( پا تي شو نی ،پس خور د ه )

په رساله کي :

د سړیو پریښون او د حلا ل خیز پاك دی

دنالت دسړی او دنوره‌لیو ه دي پلیت گڼیه

دپیشی دچرگ ، دسرك سکروه دی

او نور داهسي چي په کور کي و ینه

دخره د کچر پر ینبون مشکو ك دی

په هغه‌اوبه دي هم اوس هم تیمم وکه که‌نورنه‌وینه(۲۶مخ )

د خیرالبیان د کابل او پیښو ر په دواړو چاپو کي (پریښون) دی خو په قاموسی برخه کي (پر ینبونی) نیول‌شوی دی.

پریښون دسړی ، د حلال خیز پاك‌دی او پریښون دنالت‌دسړی دنور لیوه پلیت‌دی او پریښون د پیشی ، د چرگی ، د نیونی سرغه او چي په کور کښې وی لکه سرك ، یا مار یانور داهسی شکل مکر وه دی ( ۶۵ - الف )

**پسو :** (خنگه ، په څه‌شان ،څه رنگ) په رساله او خیرالبیان کی‌همدغه‌شان په‌نوروزړو اثارو کی‌زښت ډیر ځایونه راغلی دی.

په‌رساله کی:

فرض،واجب،سنت،مستحب،مفسدات ـاو مکروهات‌یی تا پسوزده کړی‌دینه(۲۲مخ)

په خیرالبیان کی «په‌څه» همداسی لیکل شوی‌دی لکه‌په(۱۱۳ـمخ پنځمه کرښه) کی‌خوا« پسو» نورځایونه(پسو) لیکل شوی لکه

گوره! پسو مکر که‌شیطان‌چی‌لیږ دی و ډیر مال وا ورتو لښکرو ته و هیروی عدل باد شاهان«۱۱۱ـ ب‌مخ »

دډیروشاعرانو په‌قلمی دیوانو کی‌په همدغه لیکه‌دود اوپه‌همدغه معنا راغلی خو په چاپي کی یی کله کله په ځای( په څه)لیکل شوی دی.

په‌هر سویی‌رقیبان په‌خنګ کی نا ست دی ـزه‌ویار ته حال پسو کښم په کاغذ

( مصری خان گگیانی)

مجبو با پسو څرگنده ـ دراند‌ه په دید مستوره « میا نعیم»

لکه مچ په انگبین کښی پسوبند شوی بی دایله « خوشحال غزلیات»

چی‌ځا طر دي پری‌ا زار کړم‌ـتروپسوبه‌هسی‌کار کړم«عبدالقادرـیوسف‌اوزلیخا»

**پیړی :** (پښت) قاموسونو د ( قرن ) » په معنا اخیستی .

په‌رساله کی :

چی نوسونه‌د کتابو زده کړی ترو څلور پیړی(دي)زده کوینه

محمد د عبدالله و عبدالله د عبدالمطلب وینه

عبدالمطلب‌د هاشم و او هاشم دعبدالمناف وینه

هر چی څلور پیړی‌زده که تروڅلورمقاسه‌او کلیمه‌دي‌زده کوینه(۵۷مخ)

**اخون** د ویزه د اسی راوړي .

خاوړ پیری د پاك رسول دی محمد د عبدالله، بل د عبدالمطلب، بل د هاشم بل مناف (مخزن۳۰ ا مخ )

**پلاز ، پلاس** : دا کلمه د (نیمڅی، کراستی ) په معنا په رساله کی (پلاز) او په خیرالبیان (٦٨-الف مخ) کی (پلاس) راغلی ده .

په رساله کی:

که خو رین خرمین لرگین کالی پلیت شی ـ هم پوزی یا پلاز وینه
هغه په دری و اری مسی پاك شی ـ چی او به له خاځکی ودر ینه (۳۵ مخ )

پلاس ، پلاز په نوروستونو کی هم په دو اړه ډوله لیدل شوی :

مدعا د سړی واړه سر یتوب دی ـ که یی غوندی وی اغوستی که پلا س (حسین )
نشته پښتنو کره یو کهنه پلاز ـ سره ترغر په کور کی د رو غجن لري عماز (خوشحال متفرقه )

(پو زی) په خیر البیان کی (پزی) او په رساله کی ( پوزی) لیکل شوي .

**تباه** : د فاسد (او تباه کړونی د مفسد) په معنا دغه اصطلاح په ر ساله کی زښته ډیره راغلی ده .

چی او دس یی روانه وی ـ د هغو نمونځ دي هم تبا ه گڼینه ( ۳۰ مخ )
هرچی یو حکم خطا که ـ ترو به د هغه نمونځ تباه کیږینه ( ۳۷ مخ )
هرچی یو رکن خطا که ـ د هغه نمونځ ترو تبا ه شینه ( ۴۰ مخ )

د نما نځه تباه کړونی به د ربیان کړم ـ چی سړی یی زده کوینه ( ۴۵ مخ )

**ترو** : د (نو، ځکه نو) په معنا .

په رساله کی:

هرچی یو رکن خطا که ـ د هغه نمونځ ترو تباه شینه ( ۴۰ مخ )

په خیرالبیان کی:

...وای تن دی ژغوری ترومنع په یاران صحبان او هغه چی . . . (۱۲ الف)

**توری** : ( سیه، سیایی ، دلیك د پاره رنگ په معنا .

په رساله کی:

که د ر یا بو نه شینه توری او و نی بو تی قلمو نه شینه
ی پیری فرښتی کاتبان شی ترو د خدای صفت به واړه کښینه

واړه صفت به یې و کښې نه شي ـ که توری په کښل و چ شي قلمونه یې سات شینه (٦ مخ)
په خیرالبیان کې په دغه معنا داسې راغلی ده ؛

که دریابونه شي څوپه ګړندر (ګڼندر) د مخلوقانو، ترو واړه دریابو نه توری شي
یا که له دغو په ګړندر زیات شي او یا زره کاتبان یا که له دغو په ګړندر زیات شي د
هر کاتب او یا زرو مونه شي بې ګمان و کښې، تمام به نه شي ستاد ستر ثنا خبرې که
د کښلو په بهنه قلم و نه سات شي او توری شي تمام (۱۰ الف، ب)

تو ری د پښتو په زړو دیوانو کې هم د(سیا یې) او هم د(حرف) په معنا راغلی دی.
په لو مړ ی معنا :

| | |
|---|---|
| ستا ثنا د ده یره ګر انـه | د ه بې حد ، بې پا یـا نـه |
| کـه شي در یا بو نه توری | کاتبان شي انس جن، ستوری «دولت لواڼی» |
| غم د یده زړه سې د سیني به او روسو | در د اسیزچې ریژی توری له قلمه ( لواڼی) |

په یل حدیث کې هسې راغلي چې تـوری د علم د عالمانو په جـو کل شي له هغو
و ینو چې پیدا شي له شهدانو (فو اید شر یعت ۱۰ مخ)

په دویمه معنا:

هغه څو کډ چې د دانش په توری پوه شو .
تر و په خواله د نو رو تورو شمارنه کا ـ ـ(خو شحال غزلیات)

تو رې زلفې دې پرتې د شاه په مخ باندې ګډ ایه
پا س په سپین و رق که د کتاب توری جلوه کا . .(اخون ګدا)

دا قرآ ن غیر مخلوق دی که یې ګورې
وسکه څه شو که یې توری په کاغذ د ی ثابت شوی...(مخزن الاسلا م۸۷ مخ)

**تیخ، تیخل، تیخو نی** (په مجهوله یې) د رسالې په (۲ ۵ مخ) کې (تیخ) د (سپر یدو)
ا و په (۳۸) مخ کې (تیخونی) د(مر کب، دسپرلی څاوری، اس) په معنا راغلی دی
په رساله کې :

حساب دی نه که په مال کښې نه کورنه جا مه د اغو ستن
نه هغه خریان چې د تیخ وینه (۱ ۵ مخ)

فرض نمونځ بی عذره
په تیځو نی با ندې نه شینه (۳۸ مخ).
په خیرالبیان کې په همد غهٔ معنا داسې راغلی د ه.
حسیب د ې نه که په سا ل کښې کور نه جامه داغوستن اونه د تیځ خریان
(۱۰۳ ب مخ -)
حج گذار دن واجب دی پرازاد ، پر عا قل بالغ چې شو ری، تیځو نی، د کاهله
خرڅ ولری ( ۱۰۸ الف ).
په قا مو سی بر خـه ( ۹ ۳ مخ ) کی بې د ( تیځو نی په
ځـا ی ( تیرونې) ایکل شوی) ا و (دتیځ خریان) په ځای د پښتو رپه چا پ او د
کابل د چاپ په قاموسې برخه (۳۹ مخ ) کې (د تیگی خریان) ایکل شوی چې معنا نه لری.
د پخوا نیو نور شاعر انو په دیو انو کې غالباً د(ځ) په ځای ( ز ) راغلې دی.
د اسمان توسن هیچانه د ی تیزلی
خو کۀ به خرنگه سو اري د باد په شا که (رحمان بابا)
زه خوشحال چې په ز سر بو باندې تیځ کړم
تاته څرنگه کیدرشم تروای کسه (خوشحال غز الیات)
**تیرسو.** د (درې سو ه) په معنا .
په ر سا له کی :
که په کو هی کښې سپی نا لت یانو ر د اهسې څه پر یو ځینه
که کوهی ز ینډی وی واړه او به یی و کښې نه شی
څو پکښې هوسره ، یاله سولا غ د ی تیر سو وکاږ ینه (۲۵ مخ)
دخیر البیان د(ډول) په ځای په رساله کې(سولاغ ) د ی چې اوس(سلواغه)
و یل کیږی او د (چینه دار) په ځای (ز ینډی) د ی چې ما بل ځای نه د ه لیدلې
په خیرالبیان کې:
که په کوهی کې سپی نالت یانور داهسی لیوه پر یوځي . . . هر چی پکښې و ې
واړه اوبه دې راو کاږی که کوهی چینه داروی ، واړه اویه یی و کښې نه شی واجب
د ې چې پکښې وې هونبره یاسل په ډ و ل له تیر سو بو ری او به ر او کاږی عیان
(۳ ٦ ـ الف اوب مخونه)

په خیرالبیان کی ( تیرسو) بل ځای داسی راغلی دی.

گوره د پسو د زکات دی بیان، که شی څلو یښت چرنډ گا ن کا ل پی تیر شی تما م یو دې ور که د سل شل پوری، که یو زیات شی دری د ې ور که څوتیر ـو نهه نوی شی که څو ېنسو شی څلو ر دې ور که ... (۳۰۱ الف سخ)

داعبارت په رساله کی د اسی دی

که د چا څلویښت پسونه کا ل په تیر شی

یو پسه یی ته (تر) سلو شلو پورې زکات شینه

که یو ز یات شی تر و دوه

تر دوه سوه پورې و ا جب شینه

په مخزن السلام کی دا سی ر اغلی دی

ته اگاه شه هر چی څو د پاک نبی دسرویښته وو

دولس لکه دیارلس زره تیرسو دیر ش پرې زرغو نه وو(۹ ۱ ۱سخ)

**جو تی :**(ف . س . ف. س) (هغه ځاوری چی په قو لبه کواو یا گا ډی چلو لو عادت وی) ظفرا للغات په دغه معنا اخیستی . په رساله کی ورته همد غه ډاروی مطلب دی .

نه لږ دې ، نه جوتی، نه د ژواك بنده ـ نه داو رتی پسول بېر و ن که او ږ ی دزر و وینه ( ۱ ۵سخ ) .

حسین داسي راوړی:

که هر څو چو که په لا س کی گرزومه ـ پرې جوتی نه شو رقیب غوندی خرڅگ.

**چهړ ، جو هړ ،**د(ډنډ، حوض) په معنا په رساله کی(چهړ) په خیرالبیان کی جوهړ لیکل شوی دی.

په ر ساله کی:

دچهړ چی یورخ او به کوږوی     بل رخ ( یې ) نـه کو ږ ینه

که یو ر خ ، یې پلیت شی     بل رخ د ې یی پا کی گڼینه(۳ ۲سخ)

په خیرالبیان کی:

۱ـ اوبا یزیده ! دجوهړ، ددر یاب، درود، دچینی، دکوهی اوبه پا که ـ ه او داسمان عیان(۳ ۶ الف م)

۲- با هغه جوهرچې يورخ اوبه يې و که روی ا وبل رخ يې نه کوري که په يوه رخ يې پليتي پريوزی په بل رخ يې اودس روادی د هغه ادسیان(۶۳ ب سخ)

**څو**: روښان په دوو معناو راوړي دی.

۱- په هغه معناچې اوس يې استعمال عام دی اودشمير د(څوسره والي) دښوولو ضمير دی.

۲- د(اندول، مقدار) په معناچې دا د روښا ن خاصه ا صطلا ح ده.

په د وهمه معنا په خيرالبيان کې:

او بايزيده! که تن يا جامه په درنه پليتي له درمه زياته پليته شي نمونځ پرې روانه دی وله يې فرض دی که څو درم وی نمونځ په رو ادی، و له يې وا جب دی که له درم کم وی وله يې سنت دی په ادميان(۶۵ ب سخ)

که دا ستنجا ځای له درمه زيات پليت وی وله يې فرض دی که څود رم وی وله يې واجب، که له درم کم وی وله يې سنت دی (۶۱ ب سخ)

په رساله کې:

دحيض، دنفاس د غسل پاره فرض ده * څلورم چې ځای زيات له در مه پايت وينه

که څو درم وی هغه واجب دی * که له درم کم وی سنت دی گڼينه

(د ۱۷ سخ پای ۱۸ پيل).

دخيرالبيان دلوسړي ځای په عبارت کې د(څو) په ځای په رساله کې(مقدار) راغلی دی.

که په درنه پليتي زيات له در مه پليت وی.

وله يې فرض دی يا په سپک زيات له نيم لستونی وينه

مقدار دد رم وی وله يې وا جب دی * که سپک څو نيم لستوني وينه

(۳۵ سخ أ)

**څېره:** د (یوازی، تنها، گوښی، په معنا صفت دی چی د (تکره، ډاډه) په شان د نرینه اوښځینه دمفرد او جمعی له پاره یوشان راځی او تغیر نه مني

په خیرالبیان کی نه ده راغلی او په رساله کی داسی ده.

حج دي نه گذاری څېره اورتی-بیرون چی محرم کسان ورسره وینه (۵۵ مخ)

دا مساله په خیر البیان کې داسې ده.

نه دي گذاری حج او رتی بیرون چې و رسره وی محرم ادمیان (۱۰۸ - ب مخ)

(څېره) د پښتو په پخوانی ادب کښی زیات ډیر راغلی دی.

څېره نیا زو څېره نازوی- په جفا ښه په وفا ښه (خوشحال - غزلونه)

دنیا هسې خوب وخیال دی نو ر څه نشته

یاډیر غم څېره جنجال دی نور څه نشته (مصری خان گگیانی)

که ته بې نیاز یې موږ څېره نازیو- په زړه مانه لرو سره ناسازیو (سکندر ختک)

که گنی غونډې بند بند شوه څېره خونډ شوه

ځکه تیغ دشکر لبو گنډه یری کړه (علیخان)

بی هوده مې ورته زړه هوسیده- عاشقی ده څېره نو ل او پخسیده (حمید)

**څو نسو:** د (څلورسوه) په معنا.

په رساله کې د زکات په بحث کې

که څو نسو شی څلور دې ورکه -تروپه هرسل پسې یویو زیاتو ینه (۵۲ مخ)

همدغه مسا له په خیر البیا ن کې

که څو نسو شی څلور دې ورکه (۱۰۳ — الف مخ)

درویزه دمخزن په (۱۱۹) مخ کې داسې راوړی ده.

شپږ لکه، څونسو، دوه اویا یې ووړ په پاکه ږ یره.

**خر یان.** Xary an (د خره، اس، کچر) په معنا.

د خیر البیان د کابل چاپ په قاموسی برخه کې اصلاد (خر، سردار هلی) په معنا او مجازا د (اس) په معنا اخیستل شوی ریښته یې (خر) دی چې لو سړی ار یایی معنا یې (لوی) دی.

د شینو ار و په ځینو بر خو کې (خر یا نمال) (خر ، کچر، اس) ته و یل کیږی خو په رساله او خیر البیان کې د (اس) په ځای ا ستعما ل شوی.

په رساله کې .

حساب دې نه که په مال کښې کورنه جامه د ا غو ستن .

نه هغه خر یان چې د تیغ و ینه

نه لیږ د ی نه جو تی نه د ژ و ا ک بند ه .

نه داورتې پسو ل بیرون کها و ری د زرو و ینه (۱ ۵ مخ) .

بل ځای خریان داسی را غلی د ی.

که څوک اس یا ا سپې لری کا ل په تیر شی

د هر خریان دپاره د ینار دې ور کو ینه (۵۳ مخ) .

په خیر ا لبیان کی:

حسیب دې نه که په مال کی کور،نه جامه داغوستن اونه دتیغ خریان ،نه . . .

( ۱۰۲ ب مخ )

بل ځـای :

گوره سابه درد زیږ،دسپین زر، خریان، کرله اورتی ، زهمن داهسی شکل . . .

(۲۵ — ا لف مخ)

(خریان) دد ولت لوانی په دیوان کی داسی را غلی د ی .

ددنیا مایه سره سپین زر — زن ،فرزند ، کښت و خر یا ن(۷مخ .)

د دو لت د دیوان په متن کی دعامی کتابخانی له نسخې (خوریان) غلطچاپ شوی.

د غز نی دالبیرونی د نسخی (خریان) سم دی چی په حاشیه کی نیول شوی.

دصد یق طب په قلمی نسخه کی دغاښ د در د د علا ج په باب دا سی را غلی د ی.

دخریان ښنگری گوره — په دندان کی یی کړه ورو ره .

**داله** (ف، س، ز): د(دلته) په معنا، په رساله کې دا سې راغلی ده

خلو ر فرضه دایمان دی          خلورواړه داله گویې ز ده کو ینه (۱۵ مخ)

د غه کلمه په خیر البیان کی نشته خو په همدغه معنا په مخزن الا سلام کې خو ځایه راغلی ده.

هرد م زر زر بیړی د اله د و بیړی          د اصلاح بې له بیړی سره سروولی (۱۹۰ مخ)

عاقبت به کا فر وسری بې ایمانه          چې د ده پیرو داله باندې شیطان دی (۱۵۳ مخ)

و سکه را شه کریمداده احتیاط و کړه          هرچی پیر صدساله داله ناد ان دی (۱۶۳ مخ)

میرز اانصاری داسی راوړی ده:

شمعې پټ و و یل په خوله کښې          ته پتنگ څه یې په څه کښې

و سکه پوخ نه یې لاا وم یې          دیر غلط وا یی داله کښې (دیوان ۲۵۵ مخ)

د صد یق طب په قلمی نسخه کې څو ځایه راغلی ده، یوشا ل یې دادی.

که پر سوب وینه په خوله کښې - پان ته ونیسه داله کي (دغا بښ د درد دارو)

**روا:** د (جا یز) معنا لری خو په رساله او خیرالبیان کی ځای په ځای د (فرض) په معنا هم ر اغلی.

په ر سا له کې:

سجده وخدای وته روا ده -          دخدای هستی د ې و هر رخ وته گنینه (۳۸ مخ)

دریم دایمان عمل د روژې دی-          چې روا روژه دې واړینه (۳۹ مخ)

په خیر البیان کې :

د شر یعت پو هه سی د پیغمبرانو گفتا ر کړی دی او بنیاد داسلام بنیاد دمسلمانی سی روا کلیمه دشهاد ت کړی ده .... او روا نمو نځ شپه ا وو رځ پنځه وخته دی د زړه په حضوری دجنا ن (۳۸-الف-۳۸ -ب مخونه).

بل ځای:

روا زکات دسال دتن دی دا یمان او روا حج زیارت دخلیل دجلیل د کور که هرچی طاقت لری عیان (۳۹ب مخ).

**زهمن:**- پښتوقاموسونو (زامن) دزوی جمع ، اخیستی د روښان په اصطلاح د (بچی ولد، زوی یا ور) معنا لری.

په رساله کې:

زيات نفاس دی خلو يښت ورځی — او لږ نفاس ترو حد هم نه ارينه

که داور تی زهمن وزيږی — په هغه ساعت شی پاکه چی وينه ودرينه (۸۴مخ)

سرمايه په توانگرانو ده واجبه چی دځان، دکم ز همن، دبږ ده دپاره وينه (۵۵مخ)

په خيرالبيان کې:

که دچا زهمن وزيږی په هغه ساعت بی وينه ودری حکم يی دپاکی دی. . . (۹۲ب مخ)

هـر چـې بی دوه ز همن وزيږی، هغه وينه چی له وستری زهمن پسی ووځی دنفاس حساب دې گنې عيان (۹۳ـ الف مخ)

دروژی ماتول په مسافر، په بار داره اورته روا دې چی دروژی په بهنه د تن يا د زهمن داروی (۱۰۰ ــالف مخ)

گوره سرمايه واجب ده پرتو انگران چی يی وباسی دځان دکم زهن ،دبرده.. . نه دې وباسی داورتی نه دسترز همن نه. . . . (۱۰۷ب مخ)

پـه خير البيان او رســاله کـی (ز همن) د (و لد ــلور ،زوی )په معنا د يرځايونه راغلی دی(زهمن) دوازی د(زوی) معنانه لری ځکه چی«زوی» په همدغه اوسنی ليک دود ليکی لکه د رسالی (۴) مخ (٦) کرښه او دخير البيان په (۱۰۷ ــالف مخ) دريمه کرښه کی.(زهمن) دجمعی په صورت کی په (ز هو زادليکی لکه(۱۰۵،ب،مخ) لومړی کرښه ـ دپښتو په ځينومتونو کی د(ز همن په ځای د(زاه) کلمه هم راغلی ده:

پلار شريـک د زاه په شـودی — له گنا هه بـی پخښو دی

هيڅ دی فرق نه کاعيان — دځپل زاه، يتيم ترسيان(دواړه ځايه شرعت الاسلام)

**زيږ بی** : د (نو، ز هو ب د پرهر زيږی او به) معنا .

درسالی په (۳۲) مخ کی داودس ماتو ونکو په بيان کی

په وينه ، په زوه په زيږ بی *او په دکه خو له چي وا چو ينه

په خیرالبیان کی :

اودس ساتشي. . . په وینه، په زوه، په زیربی، په د که خوله چي واچوی. . . (۶۲ ب مخ)

**ز ینډی** (Zenday) (داچینه لرونکی) په معنا د رسالي په ۵۰ مخ کي داسي راغلی.

که کوهی زینډی وی واړه او به یې وکښی نه شی.

څو پکښي هومره، یاله سولاغ دې تیر سوو کاړینه.

دخیرالبیان په (۳۶ ب) مخ کي دغه مطلب داسي افاده شوی دی:

که کوهی چینه داروی، واړه اوبه یې وکښی نه شی واجب دی چي پکښي وی

هو نبره یاسل په ډول له تیر سو پوری دې او به راو کاړی عیان.

زینډی په دغه معنا بل ځای زما په نظر نه دی راغلی.

پښتو قاموس (زیرنډی) د (چینه) په معنا اخیستی او صدر خان خټک په (آدم خان او درخانی) «۱۵۶» مخ کي داسي راوړی.

زیرنډی چینه د خون شوه      و ینې وینې د رست اړ مون شوه

ښایي دلته (زیرنډی) د (زینډي) یا بالعکس یوه د بلې بدل وی.

**ژ وی** : د (۱- ژونډی ساکښی «۲» اسان، وګړی) په معنا . په لومړی معنا قاموسونو اخیستی او په دویمه معنا په رساله، خیرالبیان او زیاتو متونو کي راغلی دی.

په رساله کي:

مسکین و یلی دینه      دغه ژوی دي نغوړ ینه (۳۳ مخ)

هغه ژوی به کافر شی      هرچې منکر له نمانځه وینه (۱۸ مخ)

په خیرالبیان کي:

ورته وایی: واړه (ژوی) د خدای دی، د ژوی مال د خدای دی،

د خدای مال روا په عارفان (۱۰۵ ب مخ).

بیاو کېرچن وتبه به هسې وایي شیطان چي وتاوته د ژوي په حضور هسي وویل (۱۱۳ ب)

رحمان بابا په دغه معنا داسي راوړي.

هغه ژوی چې بې خدا یه محبت کا = همګي وا ړه بیځا یه محبت کا

**سپېرو به**، سپېر و بی د (ودي ، پېنوبی) په معنا. په رساله کې (سپېروبه) او په خیرالبیان کې (سپېروبی) لیکل شوي دي.

په رساله کې د اودس ماتوونکو په بحث کې:

په مستیاځی، په هوس اوبه، په سپېروبه شي ـ په سنگ ریزه یې هم مات شینه (۱۳ مخ)

همدغه مساله په خیرالبیان کې.

په مستیازی، په هوس اوبی، په سپېروبی، په کم کانبی په ... (۲۰ ـ الف مخ).

د کابل چاپ په قاموسي برخه کې (سپېرې اوبی) نیول شوي خو په متن کې (سپېرو بی) دي.

**ستار**: (څلورسه برخه ۲، څلور نیم مثقاله).

په خیرالبیان کې (ستار) او په رساله کې (سپار) لیکل شوی. په رساله (همدا رنگه په خیرالبیان) کې د (س) لاندې غالباً درې ټکی اینښودل کیږي او د (ت) ټکی نه دي لیکل شوي نو په رساله کې هم (ستار) دی.

د خیر البیان د کابل چاپ په قاموسي برخه کې داسې سپړل شوې.

(ستار معرب کلمه ده چې جمعه یې (اساتیر) راځي، دوې معنا وې لري.

۱ـ که په اعدادو کې راشي (څلور) څینې مراد دي.

۲ـ که په وزن کې راشي د تاله بوه برده چې په هر جنس کې بېل د رنښت لري.....

د (ستار) کلمه چې عامه راوړه شي څلورنیم مثقا له ترې مراد یږي)

په رساله کې داسې راغلی:

که میوه شي پنځه باره او بار دې یې شپېته وي

اوړي اته سیره دي، سیره دي، شل ستاره گڼینه (۱۵ مخ)

په خیرالبیان کې:

او اوړي اته په سیر دي او هر سیر په درنو الی (دوه) شله ستاره دي (۳۰ ـ ب مخ)

دخیر البیان په قاموسي برخه کې (دوه) په (دوه شله) کې د متن نسخ تیر وتنه بلل شوي د رسالې په شهادت رښتیا هم دا تیروتنه ده چې رساله (دوه) نه لري.

**ستور** (Stwar) د (څاروی) په معناچې په پارسي ورته ستور (Sutur) وايي
په رسا له کې:

که په کوهی کښې سپې نالت- یانور دا هسې څه پر یو څینه
پسه، ستور، یا سړی چې پکښې و سړی-و اړاو به دي وکاږ ینه (۲۵ مخ)

په خیرالبیان کې:

که په کو هی کې سپی نا لت یانور دا هسې لیو ه پر یو زي یا پسه ، یا ستور
پکښې وه ږ . . . . (۲۶ الف مخ)

د ( ستو ر ) کلمه په همد غه معنا ا و غیر د پښتو په کلا سیک ا دب کې
ډیره راغلې د ه .

چې له د ر د ه یې خبر د ی - دا سړی مه کڼه ستو ر دی ( د کر یمد ا د )
په ر یا به نیم قدم په وړاندې نه شي — که د رست عمر لکه ستور د ګاڼي پند کړي. (حسین)
له خبرو که خوله ونيسي خاموش شي - نوم به زر کیږدي په تاد غو بل ستور (خوشحال ستفرقه)

**سرولين** (Surwalin) د (مسی ،مسین، له مسو څخه جوړ ) په معنا
په رساله کې:

که وسپر ین سرولین یا تیغ پلیت شي - پاک به شي که یوواري پر ینځینه ( ۲۶ مخ )

په خیر البیان کې:

که وسپرین، یا سرولین یا داهسې نور کالي یا تیغ پلیت شي.... (۶۷ الف مخ)

سر و ین د (مسی ،مسین) به معنا نسبتي کلمه د ه چې (سرویل) ته منسوبه ده
د ( سر و یل ) کلمه په پښتو ا د ب کې ز یا ته ر ا غلې ده مثلا سیم و ز ر مس
و سر و یل تری پیدا کیږی - دسو ر نس لکه بوته دي دا کسیر (خوشحال-قصیدی)
لوی منصبونه چې وچاته ور کوی هسې دي لکه دلعلو جواهر وغمی ، داغمی
که په زرو کښې کیږدي که په سیمس ،سرویل کښې ، په هغه غمې پو ری هغه په
قدر شي (دستا رنامه د کابل چاپ ۱۱۳ مخ )

د (سرو لین) کلمه په مخزن کې داسې استعمال شوې ده ....

کله چې به نور (نمر) یوه نیزه شي هم زنکه سر و لین ، د هر چا به د عمل څیری
په لاس که . . . (۸۸ مخ)

**سر ه و تل** Sara—Watəl (دیو ځای کیدل، ګډیدل، ضمیمه کیدل) او سر د ایستل د( یوځای کول ، ګډول ضمیمه کول) په معنا .

په رساله کې :

که پاک ځیزور سره ووځی پلیت نه شی- که یو صفت داوبو وجار باسینه(۴ ۲ سخ )

په خیر البیا ن کې :

روژه له خوړو، له ښځو، له سره ورته سنې «سنع» که بې شپې ادسیان «۱۹۸ - الف سخ»

زه فارغ یم له خوړو، له ښځو ،.. له سره وته له خویه د ادسیان «۳ ۶ ۱ - الف سخ»

ددغه فعل دحال او مستقبل اساس په همدغه معنا داسې راغلی دی:

اودس رو ادی په هغه اوبه که پاک ځیز ورسره وځی چې یو صفت داوبو وجار باسی

لکه نیز بی ، لبو پی... (۳ ۶ الف سخ).

په همدغه معنا درویزه داسې را وړی دی .

مصایان لکه «که» سره ووځی اول حق د اما مت د هغو دی چې په علم ډیر

پوهیږی «۳ ۷ سخ» .

د «سره وتل» متعدی فعل «سره ایستل» او «سر باسل» په دې ډول را غلی دی .

په رساله کې :

با ور کانې ء عالمه په نمانځه کښې دولس واجب دینه

ورسې چې الحمد لولی دو یم چې سورت ور سره باسینه « ۱۴ سخ » .

په خیر البیان:

او هغه واجب چې دی په قیام لوستن دالحمد ورسره یستل دسورت یا درې آیته

له قرآنه چې په ده وی هسان «۵ ۷ ۱ لف »

**شرمځای** د «عورت ، د بدن هغه برخه چې پټول یې فرض دی» په معنا . په لومړی نظر

داسې ښکاری چې هغه غړی به وی چې ښکاره کول یې شرم وی یعنی «غلیظه عورت»

خو په رساله او خیر البیان کې د «عورت» په معنا را غلی دی .

پہ رسالہ کې:

دشر مځای پتول حکم د نما نځه دی * چې نمو نځ بی صحیح شینه .

دمیرہ شر مځای لہ ناسہ تر زنگانہ دی * ولې نوم دې شرمځای نہ گنینه .

داورتی شر مځای واړہ تن دی *سخ لاس پښې د نمانځہ پہ حق دشر مځای نہ دینه

«۳۷-۳۸سخو نه ».

**پہ خیر ا** لبیان کې :

دشر مځای پټول پہ حق دنمانځہ د درستوالی د پارہ شرط دی پہ ادسیان .دمیرہ شرمځای دناسہ او دزنگانہ پورې دی. زنگون دی، لہ شرمځای... گنلی نہ دی . ..

داورتی شر مځای تن دی تمام وای لاس او پښې د نمانځہ پہ حق دشرمځای نہ دی

«۶۸ب ۶۹ - الف سخونہ »

**غو ښتل** د«طلب، لټول» پہ معنا .

پہ ر سا لہ کې :

فرض دتیمم دغہ دی-چې پا کہ خاورہ وغو اړ ینہ «۳۲ سخ »

همدغہ مسا لہ پہ خیر البیان کې :

د «تیمم فرض» دپا کیزہ خاورې غوښتہ او نیت ... «۶۱ ب سخ »

(غوښتل) پہ دغہ معنا قامو سونو نہ دی اخیستی خو زیاتو شاعرانو راوړی دی .

پہ طلب می دغا فل هسی خند اشی

لکہ څو کڅ وی زوی پہ غاړہ او زو ی غواړہ«حمید»

دځو انی ز ما ن مو ندہ پہ طلب نہ شی

همیشہ بی کہ پہ دور غوارم غوا ړم «هجری»

**غېل Ghel** د «غوجل» پہ معنا. پہ رسا لہ کې د ا سې ر ا غلی دی

هر چې ا مـر نهی دروژې نہ ز د ه        پہ مانند د هغہ څا روی دینه

چې په غیل کښې مشقت که او خوله یې هم تړلې وینه«. ٥ مخ»

دغه کلمه دپکتیا په ځینو برخو «خوست» کې د«غو یلې» په بڼه ژوندۍ ده چې ریښه یې«دغالۍ»او «غولۍ» سره اړه لري .

**کالۍ :** Kalay د«آلې ، ذریعې» په‌معنا. په‌رساله او هم په خیر البیان کې را غلې دي .

په‌رساله کې :

دی بــا د شــاه غــنــی دی چــی داسې چارې پــه د ه شینه

سړې ځینې چارې بې کالې کړای‌نه‌شي ده‌واړه‌مخلوقان‌بې کالی کړی‌دینه «٥مخ»

په خیر البیان کې :

گوره! : زه هغه‌بې‌پروا یم چې‌هرچار تل بې شر یکه، بې‌سله بې کالی کړم نشته زسا محتا جې شریک وسل وکالي ته لکه د اد میا ن«. ١٦ ب‌مخ»

**کړل:** په‌خیرالبیان او رساله کې د غه فعل په د وه لحا ظه‌د غور وړ دی

**١-** کړل(همدا رنگه کول) غالباً د کوسکی او سرـتیال فعل په‌صورت استعمالېږي خو په رساله او خیرالبیان کې د (خلقول، پیدا کول ،ایجادول) په معنا څو ځایه د(عمده فعل ) په حیث راغلی دی.

په رساله کښې :

دا اسما نـونـه زمکی واړه ســا ستا لــه ا بر وی کړی د ینه (٧مخ)

نیکی بدی کړی خدای‌دی په نیکی راضي‌په‌بدی‌ناراضي‌وینه(٣١مخ)

په خیرالبیان کې:

دا هسې شکل سې ددنیا سایه کړی ده او ځناوران .. (٥٢-الف‌مخ)

هر څیز سې په اتکل کړی‌دی سړی‌سې‌بهترین کړی‌دی‌له‌واړه مخلوقان...
(٢٧- الف‌مخ).

**٢ -** په رساله کې د(کړل )فعل‌دامر په صورت هم دمفر داوهم‌دجمعې‌له پاره څوځایه د (کانه، کانیء )په‌صورت راغلی دی.

دجمعې‌په صورت :ـ دخدای استازی‌سې یوسرگډ دي* باور کـنیء ناگاها به د رشینه (لومړی‌مخ ):

د مفرد په صورت :

چاره دخداي په نغوته کا نه ـ سحبان به له ابرا هیمه سر دوینه (وروستی مخ ).

زده کانه چی زکات په چاروا ـ او ناروا چی په چا وینه (٥٣ مخ).

په پخوانیو ستونو کې ځای په ځای د (کړل) په ځای «کانهل» (دوړل) په ځاي (وانهل) د (خوړل) په ځای «خوانهل» دحال، مستقبل اوامر، په فعلونو کی غالباً د جمعی له پاره راځی اود مفرد له پاره ډیر لږ لید ل کیږی لکه.

ستا وصلت د رقیب سرگ زما اختر دي.

امین کانهیء په خوله څه نه وینا راغله (حنان بارکزی)

چی سوزړه هغه څه کانهیء اختیار ستا شی ـ زما نه، حکم د ښهر اود یار ستاسی (نیرنگ عشق )(٩٧ مخ).

دخوانهل مثال:

دوی وای حرام خوا نهیء په قیاست به د حرا مو عذاب نه وی (مخزن ٧ مخ)

دوا نهل مثال:

وې یی زربی حاضر کا نهیء ـ دی وما ونه را وانهیء

د طالب رشیدگل او صنوبر (٦٦ مخ).

**کم**: د (وړوکی) په معنا هم په رساله او هم په خیر البیان کې د (کم زهمن = ووړ زوی یا وړه لور، کم عید ـ وړو کی اختر، کم کانهی ـ گیټکی، وړه تیږه، سنگریزه) په رساله کی کم زهمن داسی راغلی.

سر سایه په توانگرانو دهواجبه ـ چی دخان د کم زهمن دبرده دپاره اوسینه (٣٥ مخ) په خیر البیان کی (کم زهمن).

گوره سر سایه دروژي واجب ده پرتو انگرانوچی یی وباسی دخان د کم زهمن، دبرده و دپاره په تا دی وی اعلام (١٠٠ب مخ).

**کوړول**: د (خوزول) په تول، د (خوزول، ښورول، حرکت ورکول) (کوړیدل)

د(خوزیدل) په تول د (خوز یدل،ښو ر یدل، حر کت کول) په معنا په ر ساله او خیرالبیان کې ډیرځا یونه ر اغلی دی.

په ر ساله کې:

د چهړ چی یورخ او به و کو ړوی — بل رخ (یی) نه کوړ ینه

که یو رخ یی پلیت شی — بل ر خ دې پا ك گنینه(۳ ۲ مخ)

په خیر البیان کې:

یا هغه جوهړ چی یورخ اوبه یي وکوړوی اوبل رخ یی نه کو ړی که په یوه رخ يي پایتی پر یو ځی په بل رخ یی اودس ر وادی (۶۳ب مخ)

د خیرالبیان په (۹ ٥-الف، ۳ ٦ ب، ۲ ٥ ۱ ب، ۲ ٦ ۱ ب ۳ ٦ ۱ الف، ۳ ٦ ۱-الف) مخونو کی را غلی دی .

لیړ د ی د(بار وړ لو بود ه ) په معنا .

په ر ساله کی:

نه لیړد ی نه جوتی نه دژواك بنده- نه داورتی پسول بیرون که اوړ ی وینه (۱ ٥ مخ)

په خیرالبیان کی :

حسیب د ي نه که په مال کښی کور ،نه جامه داغوستن اونه دتیغ خر یان ،نه کیړدی نه لیړدی نه دژو اك بندگان (۲ . ۱ ب مخ )

**ریوه:** چی د (شر ښې) معنالري په ر ساله او خیرالبیان کی د(ځناور) په معنا اغلی دی .

په رساله کی :

د سړ یو پر یښون، د حلال ځیز پاك دي -د نالت دسپی او د نوره لیوه دې پلیت گڼینه

په خیرالبیان کی : (٦ ۲ مخ)

پریښون دسړی د حلال ځیز پاك دی او پر یښون د نالت د سپی او نور لیوه پلیت دي (٥ ٦ ، الف) مخ

**مزدك:** (د جو ما ت ، مسجد ) په معنا په ر ساله او خیرالبیان کی ډیر ر اغلی

په رساله کی :

سنت دی ( اودس ) دخو ب ، د کتاب دپاره -اوچی زیارت دگورستان کړینه او چی مزدك ته ننوځی -پنځم چی قرآن په یاد ولینه (۲۸ مخ).

نه دې وهندو ورکه (زکات) نه دې مزدك په روغ که ـ
نه دې په کفن کفن که نه دی په برده ازادوينه (۳٥ مخ).

په خيرالبيان کې:

دجمعی دنمانځه په وقت دې دمزدك ور نه تړی دسيان (۸۷ الف مخ)

**ملل:** (داستوګن کيدل، ساکن کيدل، اوسيدل، کلهاروَل) په معنا.

په رساله کې داسې راغلی.

له کفره دې وسلی ـ هرچې به منکر له حجه و ينه (٥٥) مخ.

ددغه فعل دحال او مستقبل اساس (سلل، پريملل) اودماضی اساس (ميشتل، پريمشتل) اوستعدی يې «ساول» دی. مثالو نه يې:

**ملل:**

چې يو غم ور ځنې د روسی بل پر ېسلی ـ زه حميد خدای په غمو نو کی اماج کړم (حميد)

دخوشحال خاطر په مثل کاروان سرای دی ـ انديښنې پرې کاروانونه ملی ايبردي «خوشحال»

لکه ملی هوسره خلك ځينې ايبردی ـ يوساعت نه ده دنيا په چا قراره (قلندر)

**پريملل:**

د صورت له کوره کليه بيګا نه شم ـ د معنو په ميـنه پر يملـم يګـا نه شم

(نيرنګ عشق ـ ۱۰۲ مخ)

په هرملك چه زمری پريملی نوريې خپل کا ـ په جواريې رباکله بردی قدم (مصری خان ګلکيانی)

که نظر دې دمحبوب په جمال پريملی ـ په ديدن به ځينې ګوښې نه پا يږی (ميرزاخان)

**پريمښتل:**

دارام په مينه پر بهشت په ارام شو ـ خلاص له پيره کشمکشه داايام شو (شاه وګدا)

که دې زړه ديك رنګې په ملك پريمشت ـ که خيره دې سره که زيړه وار ذوق دی

(خوشحال ـ متفرق)

ذوق اوشوق بې دانده وه په غولی پريمشت ـ چې ښادی يې په کمال شوداوس ماتم مري

(ميرزاخان)

**ملول:**

ګلی دې د زړونو ستادمخ په لور رواني ـ وار ه ملك بوستان دی په هرځای يې ملوه (خوشحال)

په احمد زيو کوچيا نو کې (ميله = خج په لو مړی هيجا سجهوله يی )
( د کړو اړو لو) دځا ی په معناژوندی ده.
نالت ) د( خوګ ،بد ځنا ور، سر کوزی ) په معنا د وه ځا یه په رساله او دوه
ځا یه په خيرالبيان کې‌را غلی‌دی .
په‌رساله کې:
د سړيوپريښون یادحلال‌خيزپاك دی-دنالت‌دسپی‌اودنوره ليوه‌دي پليت‌ګڼونه(٢٦مخ )
که په کو هی کښی سپی نالت -یانو ردا هسی‌څه پریوځينه (٢٥مخ )
په خيرالبيان کی:
که په کو هی‌کښې‌سپی نالت یانور داهسی ليوه پريوزی (٦٣ — الف‌مخ )
پر يښون‌د..... پاك دی او پريښون دنالت‌سپی‌نور ليوه پليت‌دی(٦٥-الف‌مخ )
درسالی او خيرالبيان نه‌پرته سايو ازی دصد يق په طبی‌قلمی‌نسخه کی ليدلی‌دی:
چې مقعد دچاپيروت شی - سړی ډير په‌دا زبون‌شی.
ککری د نالت کړه - په اتش یی سکو رلت پت کړه (د مقعد دخروج بحث)
(نالت) عربی کلمه ده چی د(لعنت) پښتو شوی بڼه ده خو په‌رساله کی(لعنت)
( په‌خپله‌اصلی معنا غالباً همداسی ليکل شوې لکه درسالی په (١٨ مخ ) (٥)
کرښه‌کې خوپه‌خيرالبيان کې کله(نالت)اوکله (لعنت) ليکل‌شوی لکه:
په ١٣- الف مخ ،دويمه او څلورمه کرښه) ،(١٨-الف٦ کرښه کی (نالت)دی.
**ښتيدل**:- (ښتيځل،نچوړل) په معناپه رساله کی داسی راغلی .
اودس په‌هغه‌اوبه روانه دی - چی دوئی له‌سیوی‌ښتيدلی وينه (٣٢ مخ )
په خيرا لبيان کی :
روانه‌دی(اودس، په هغه‌اوبه‌چی‌له‌و ئی له‌سيوی ښتيدلی وی ،به هغه چی‌نورڅه
يکښی ډيرشی(٣٠٠٠٦ الف)
دخوشحال په لا ندی‌شعر کی‌ښتوب(څوړداو بو دجر یا ن پلو(له‌همدغې

کلمی سره کړه ر ښنه لری.

اول دا پــل صـر اط دی چی به دیر کاله حصار شی
نیم ستغ دی نیم نښتوب دی واړه دیر ش زره په شمار شی

د ا فعل د ( نښتیځل ) په بڼه په همدغه معنا. پښتو قاموسونوا خیستی او هم په کلاسیک ادب کې راغلی دی مثلا د پیر محمد کا کړ په دیوان کې.

خشک صورت زیړه ځیره یم نښتیځلی دعشق رنځ شور ادوچار لکه طاعون

نېزو بی: nezobay د (نیزبی، دسیلاو اوبه، نیزا وبه) په معنا .
په رساله کی (نزوبی) لیکل شوی.

که پاک ځیزورسره وځی پلیتي نه شی ـ که یوصفت داو بووجار باسینه لکه نزوبی یالبرزمی ـــ کهسابون، زعفران یا پی و ینه (۳۲) مخ .

په خیرالبیان کی (نیزبی) لیکل شوی :

ا ودس روادی په هغه اوبه چی پاک ځیزورسره وځی چی یوصفت داوبووجار باسی لکه نیزبی یالبزبی یا زمی یاسابون ورسره وځی یا زعفران (۶۳ الف مخ ) د خیر البیان د کابل چاپ په قاموسی برخه کی د(ناز بو بیری، کشمالی) سعناورته لیکل شو یده خو دغه کلیمه ا صلا له دوو برخو جوړه ده «۱ » نیز، سیلاو) ۲ (وبی) د (لوبه) په معنا ورستاړی ـ دی لکه په (سپیروبی، هوس اوبی، زیړ بی ) کی.

و (wa) : په رساله او خیرالبیان کی د(ته) په معنا چی (ته) د اسم ذات نه وروسته او (و) له هغه د مخه راځی اسم ذات که دمفعول له ـ Dative په حا لت کی را شی په خیرالبیان او رساله کی هلته یو ازی (و) لیکل شوی او که گر ا سری سمتی حا لت Aditve راشی هلته هم ( و) او هم (ته) ـ لوسری مثال په رساله کی: د هغه چا یحث چی بایدز کات ور نه کړ شی.

نه ومیره واو ورتی، نه اورته ومیره نه تښتن وهغه بنده چی په مال ازا د کړي و ینه (۵۳ مخ)

په خیر البیان کی همدغه مسئله :

نه دې ورکه وپلار ونیکه اونه په پورته نه وزهمن نه ونمسی نه په کښته ، نه میره
واورتی نه اورته وسیره اونه تښتن . . . . (٦٠ ا ب).

په گراسری سمتی حالت کی داسم نه دمخه (و) او وروسته (ته) را ځی.

په رساله کی:

څلورم دگوتومخ چی وکعبی وته که — پنځم چی نظروسینې وته لرینه (٥ ٣ مخ).

په خیرالبیان کې:

نظرد ې دسجدی و ځای ته وکه . . . (٧٦-ا لف)

د (ته) په ځای د (و) استعمال چی په ساساني پهلوی کی هم د (و، اوی- o,avi) په غیر ونو
سوجود ؤ د پښتو په کلاسیک ادب کښی زښت ډیر راغلی دی:

تا غاله وگل خپل زړه ور کړ بلبلې - که یی تل و ای دابازار د ز بیایی (خو شحا ل)

چی یې ما په سرومال خریداری کړ — سفت دې ور کړ ورقیب هغه و ستو نه (حمید)

چی په ناز ساتلی زړه سی ویارور کړ — ورپسی سی ځان واړه اختیار و رکړ (علی خان)

**وسپرین :** Usparin (ا سپرین) (داوسپنی څخه جوړ شوی) په فارسی ورته
(اهنیین) وایی :

په رساله کی (وسپرین) او په خیر ا لبیا ن کی (اسپرین) لیکل شوی دی.

په رسا له کې :

که وسپرین ، سرولین یا تیغ پلیت شی

پاك به شی که یو واری پر بوینځینه

په دا هم پا کیزه شی *په ایری چی و سرینه (٣٧ مخ).

د خیرالبیان په (٦٧ الف مخ) کی داسی راغلی دی:

که اسپرین یا سرولین یا داهسی نور کالی یا تیغ پلیت شی که یو واریی پر بوینځی
پاك شی په خاوره یا په ایره یی ومږی په تا د ې وی اعلام (٦٧ الف مخ)

د «اسپرین » یا «و سپرین» کلمه یا باسعیدا سې راوړې ده.

که دې ايښې پا س په سر غر ونه دی

جوړدې په ستر کو اوسپرين مخو نه دی

دځان تر دانه و ځان قهسخت کړه

د خلق په زړ و چې دې آزار و نه دی

د «صديق طب» پهقلمی نسخه کی دپيری د تورو لو پهبيان کی داسی راغلی:

شل د ر م بيخ نيلو فر دی | له بقر ا طه د ا هنر دي
په اوسپرين لو ښی کی يا ر ه | مياشت دفن کړه نامداره

**و و:** - دغه کلمه د(باد ،هوا) پهمعنا شو ځايه په رساله او خيرالبيان کې راغلی ده.

دخيرالبيان په(٦٧ب اتمه کرښه) کې د(وو) او په(٣ ٩ب دريمه کرښه) کی (و) او په (٧٤ الف دريمه کرښه) کې او همدارنګه (٦٢ب لومړی کرښه) کې په (ؤ-واو-چې همزه له پاسه لری) راغلی ده.

په رساله کې په(وو) ليکل شوي:

باور کانیء عالمه- اودس پهاولس تو که مات شينه.

پهوو ،په ګندګی په،چيمجی همشی-چې له روستی سو را خهووځينه (٣١ مخ).

په خيرالبيا ن کې :

(اودس) په وو،په ... چيمجی په دامات شی(٦٢ب مخ).

د پوهاند محمد کاکړ په(معرفت الافغانی) کې دطبيعی پيښو د نومونو په بحث کې(و) ته د ( با د ) معنا ليکل شوی ا و ( و و جن) د(با دی ، ر و ما تيزم لرونکی) په معنا ا خيستل شوی دی(٠ ٤ مخ) . پهاوسيتا کې(Vayu) د(هوا) رب النوع وه

د پروفيسر ابراميان د(پهلوی، پارسی، روسی، انګريزی، ارميانی ) په قاموس کې د پهلوی( و يو Vayu) د ( تنفس ) او(باد) په معنا اخيستل شوی دی. له دغه ځايه ويلی شو د(و+ب) دغبرګو په بدلون لرغونی اريايي ريښه لري.

**و هير:**

دغه کلمه هم په ر سا له ا و خير ا لبيا ن کې د ( هير) په معنا ر اغلی ده

په رساله کې :

زه به رساله په پښتو وکښم　　　　کــه عنـایـت د مـولـی ویـنه

پکښې به امر نهی ساز کړم　　　　چې سرې یې د نزمو (نظمو) په دودلولینه

چې وهیروی د هغو به په یاد شي　　　　او دهغه به زده شي چې زده کوینه (۲ مخ)

دغه کلمه په (مخزن الاسلام) کې کله د (هیر) او کله د (وهیر) په لیک دود لیدل کیږي، مثلا د مخزن په (۵، ۱۰، ۳۶، ۴۵، ۵۰) مخونو کې (وهیر) دی او مثلا د (۷۹ مخ د پای له خوا د ویمه کرښه) او په نورو زیاتو ځایونو کې (هیر) دی.

څنګه چه داخون درویزه لهجه دننګرهار ده او هلته دا کلمه (هیر) ویل کیږي نو له دغه ځایه د درویزه په لیکنو د روښان څه ناڅه اغیزه لیدل کیږي چې له هغې جملې څخه به دغه کلمه هم وي، دغه کلمه په ډیرو لږ سوارد و کښې د (وهیر) په بڼه ده، زیاته د (هیر) په لیک دود لیکل شوی تر دې چې د پیر روښان پیرو انو هم غالباً (هیر) لیکی .

میرزا خان انصاری لیکی:

په یوه خاطر دومینو ځای نه شی ✿ چې یوه په باندې راشی بله هیره

(د عامی کتابخانی قلمی نسخه )

په خیر البیان کی:

رو ژه روا ده په نیت د شپې که یې وهېرشی نیت یې روا دی پخوا چې نور (نمر) وچاروزی عیان (۹۷ ب).

**هوس اوبه :** د رمذی، پینوبی) په معنا.

په رساله کې (هوس اوبه) لیکل شوی او په خیر البیان کې (هوس اوبی) لیکل شوی دی.

په رساله کې:

باور کانې ء عالمه ـ اودس په او لس توکه مات شینه

په متیازی په هوس اوبه په سپرو به شی ✿ په سنګ ریزه یې هم مات شینه (۱۳ مخ)

په خیرالبیان کې:

په سیتیا زو په هوس او بی په سپرو بی . . . (٦٢—الف مخ)

**هوی**: (hoy) د-١-(هغه)-٢-(دغه) په معنا .

په رساله کې:

یه حلال کی حرام هوی دی—چی په حیض په نفاس کې نزد ې شینه (٩ ٣ مخ).

په خیرالبیان کې:

عذاب د پو ښتنی هوي دی چې له مرگه پس به . . . (٣٠ ب مخ)

زیاتو شاعرانو راوړی ده :

هوی نمونځ به دې و نه شی          بې کامله پیر ا ساسه (ارزانی- ورکه خزانه)

هوی سر که بیا ا ظهار شی          ترا بد به یې عارشی (در مجالس افغانی ٣١ مخ)

د آ شنا له ډ یری مینی          هوی مرگ په د ه اختر شو (میرزا خان

وجود ظاهر په . . . شو په عین عکس هوی شوی (مخزن ١٥٢ مخ).

«پای»






# *ROSHANI RESALA*

## *Pashto Academy*

**Kabul Afghanistan**

**DECEMBER, 1976**

Government Printing House